# احمدشاهي کندهار



## لومړی ټوک



لیکوال

محمدمعصوم هوتک

۱۳۸۳

لمریز کال

بسم الله الرحمن الرحيم



**د كتاب پېژندنه :**

د كتاب نوم :: احمدشاهي كندهار
ليكوال :: محمدمعصوم هوتک
خپرندوی :: رشاد خپرندويه ټولنه ـ كندهار
كمپوز او ډيزاين :: رشاد كمپيوټر اداره
اوډونكى :: م "روهيال"
چاپكال :: ۱۳۸۳ لمريز كال
چاپشمېر :: ۱۰۰۰ ـ زر ټوكه
د خپرونو لړ :: (۱)
چاپچاري :: صحاف نشراتي مؤسسه

# د خپرندوی یادښت

احمدشاهي کندهار د هیواد د مشهور لیکوال ښاغلي محمد معصوم هوتک د هغه چاپي اثر نوم دی چي د نن څخه تقریباً (۸) کاله وړاندي په (۱۳۷۵ لمریز) کي په کاناډا کي د هغوی په شخصي لګښت چاپ سو.

کتاب د خپلي هغي منځپانګي له مخي چي د کندهار پر جغرافیایي موقعیت او پېژندنه باندي رڼا اچوي د ښه پوره اهمیت وړ دی، چي د ټولو افغانانو خو په ځانګړي ډول د هغه افغانانو او کندهاري وروڼو لپاره چي د هیواد څخه دباندي اوسي او یا هلته زېږېدلي وي ښه په زړه پوري معلومات لري، دا چي نوموړی کتاب د هیواد څخه دباندي چاپ سوی او د هیوادوالو څه چي د زیاتو لیکوالو تر ګوتو هم نه دی رسېدلی، نو ځکه یې د دوهم ځل چاپېدو لپاره رشاد خپرندویه ټولني هلي ځلي پیل کړې، خو له نېکه مرغه ښاغلي هوتک صاحب د خپلي ځانګړي پېرزویني له مخي د نوموړي کتاب د دوهم ځل چاپېدو پېرزوینه وکړه، دلته دا یادونه اړینه ګڼم چي د کتاب دا ځل چاپ د لیکوال د لوري پر پخواني چاپ باندي د پوره زیاتو معلوماتو تر اضافه کولو وروسته د لومړي ټوک په ډول چاپیږي، له دې څخه معلومیږي چي کتاب دوهم ټوک هم لري او هغه به هم انشاء الله په نژدې راتلونکي کي درنو هیوادوالو ته وړاندي سي، او له درنو لوستونکو څخه هیله کیږي چي که یې د دغه کتاب له موادو څخه د ماخذ په توګه کار اخیست له همدغه دوهم چاپ څخه دي استفاده وکړي.

رشاد خپرندویه ټولنه نېکمرغه ده چي د خپل نشراتي بهیر په لړ کي نوموړی کتاب د لومړي چاپي اثر په توګه درنو هیوادوالو ته وړاندي کوي.

په درناوي

رشاد خپرندویه ټولنه ـ کندهار

# فهرست

# د لوی خدای ﷻ په نامه

د سږکال د فبرورۍ په میاشت کې ګران مطیع الله جان زما د پخواني اشنا کاکا اسدالله خان په واسطه کاناډا ته خبر راکړ او د خبرو په ترڅ کې یې زما د یوه اثر "احمدشاهي کندهار" د بیا چاپولو خبره رایاده کړه. په دې برخه کې یې له فاضل استاد پوهاند عبدالشکور رشاد صاحب سره هم خبرې کړې وې او هغوی لاربښوونه ورته کړې وه. چې موضوع زما سره طرحه کړي. ما تر "ښه" ویلو وړاندې ورته و ویل چې د دې کتاب ځینې برخې بشپړېده غواړي، تاسې یې چاپ زما تر لیکه پورې وځنډوئ. دوی هم خوښه کړه.

زما دغه اثر، چې د احمدشاهي کندهار جغرافیایي شرحه ده او د تشریحاتو ساحه یې د ښار عمومي بازارونه، واټونه او سړکونه دي. په دې برخه کې چې پر کومو کوڅو او محلاتو پېښې سوې یم او له هغو سره په ارتباط کې د کوم تاریخي شخصیت د معرفۍ اړتیا محسوسه سوې ده، هغه مې هم کړې ده. د اشخاصو په معرفي کې مې تر زیاتي اندازې هغه کسان معرفي کړي دي چې په نامه یې یوه کوڅه، مسجد یا کومه بله وداني سته. د دغه اثر لیکنه مې د ۱۹۹۳ کال په منځ کې شروع کړه د ۱۹۹۶ کال د اکتوبر پر شلمه یې له دوهم وار کتنې څخه فارغ سوم، د چاپ چارې مې په نژدې دوو اونیو کې بشپړې کړې او د همدې کال د نومبر په دوهمه اونۍ

کي مي پر یو څو محدودو دوستانو وویشئ. د نومبر تر پایه پوري نیویارك ته او وروسته په تورنټو او مونټریال سربېره کلیفورنیا، ویرجینیا، هند، پاکستان او کندهار ته ورسېد. د دوستانو له خوا تشویقي لیکونه او تیلفونونه راغلي دي چي په دې ډول له ټولو څخه ممنون یم، د نیازمنو غم دي نه وي. د کتاب تر چاپ وروسته د ۱۹۹۷ م کال په دسمبر کي دوو تنو ښاغلو صاحبانو (پر احمدشاهي کندهار باندي یوه لنډه کره کتنه) په نامه یو کتاب په تورنټو کاناډا کي توزیع کړ. په دې کتاب کي د نقد د علمي موازینو پر خلاف له اهانته ډکي جملې، تورونه او ځیني داسي اعتراضونه راغلي دي، چي که هغه د محك په توګه ومنل سي نو بیا پخپله د ناقدینو د لیکني په ګډون په سلو کي نوي افغاني نشرات له دغه شان اعتراضو څخه خلاصېدلای نسي. خو د دې ټولو پر ځنګ یې ځیني پر ځای خبري هم کړي دي. ما د دغي کتني جواب بشپړ کړی او چاپ ته مي تیار کړی و، چي زما فاضل استاد پوهاند رشاد صاحب زما د کتاب او پر هغه باندي د نقد یو یو ټوك راڅخه وغوښتل. د استاد امر مي پر ځای کړ او کتابونه مي ور ولېږل. د استاد لخوا لیك راورسېد او په هغه کي یې ځیني یادوني راته کښلي وې، چي د کتاب په دوهم چاپ کي یې باید په پام کي ونیسم. د کتاب پر نقد باندي یې د لنډي تبصرې په ترڅ کي کښلي و چي "نقد صرافت منځ ته راوړي، خوا مه په بدوه، خپلو فرهنګي هڅو ته دي لا زور ورکړه". د دې لیك له رسېدو سره سم مي د جواب له نشره صرف نظر وکړ. اوس چي د رشاد خپرندویي ټولني د دې کتاب د بیا چاپ تکل کړی دئ، نو ما هغه برخي، چي بشپړېده او سمېده یې غوښتل، له سره وکتلې او لازم بدلونونه مي د دې یادوني او ځینو عکسونو سره ګران مطیع الله جان ته ولېږل او سپارښتنه مي پر وکړه، چي په نوي چاپ کي یې په پام کي ونیسي.

لکه ما چي د لومړي چاپ په پیل کي ویلي دي دا کتاب د کندهار بشپړ تصویر نه دئ او هرو مرو به نیمګړتیاوي لري. له درنو لوستونکو څخه یو

ځل بیا د بخښنې هیله لرم. ما دا کتاب په خارج کي د افغاني مهاجرو دپاره کښلی و او په پام کي مي و، چي په دوهم توك به يې د ښار کوځې او نور محلات معرفي سي. ځکه مي د دوهم چاپ د خپروونکي څخه وغوښتل، چي پر کتاب لومړی توك وليکي. دوهم توك به يې که د خدای ﷻ رضا وه او حوادثو فرصت راکړ وروسته خپروم.

زه د رشاد خپرندويي ټولني ته د دغه کتاب د بيا چاپولو له امله کورودانی وايم او د لوی خدای ﷻ له درباره ورته د فرهنگي هڅو په لا گړنديتوب کي توفيق غواړم.

محمد معصوم هوتك

اوكويل ــ كاناډا

۲۸ فبروري ۲۰۰۴ ع

# پیل

جګړې او یرغلونه هیوادونه او اولسونو تـه راز ـ راز بدمرغـۍ راوړي انسانان د مرګي شومه کوي، ښارونه له خاورو سره برابر کړي، اولسـونه لـه خپلي اباي مېني څخه کوچ او مهاجرت ته اړ کړي، ځوان نسلونه له ښووني او روزنی څخه پاته کړي، د میشته اولسو په زړونو کي د میني او محبت پر ځای کرکه او نفرت وکري، د پلار و نیکه کارنـامې، لـه ځـوان نسـل څخـه هیري کړي، زلمیان له خپل تاریخ څخه بې خبره پاته سي او نـور پـه سـلګونو مصیبونه یې په پېښه سي. مـوږ تـه لـه روسـي یرغـل لـه لاسـه دا هـر څـه راورسېدل چي اوس هم د یرغل او تاړاك د ناولو نتیجو سیلاب اخیستي یو او د بدمرغیو په ارهټ کي تر غاړي ډوب پراته یو.

د دې لویو بدمرغیو په لړ کي یو هم د لویو، او تاریخي ښارونو ورانېـدل دي او زموږ د یو زیات شمېر هغو کورنیو تنکـي ځوانـان او پیغلـي چـي پـه امریکا، کاناډا او نورو هیوادو کي اوسي، له خپل وطن او په ځـانګړې توګـه له خپل ښار او کلي څخه ناخبره دي، دا زموږ اساسـي مسـئولیت دئ چـي د خپلو اولادو ذهنونو ته لومړی باید د ټول هیواد یو کُلي تصـویر ورکـړو او پـه دوهم ګام کي خپل ښار او کلي و پېژنو، دا د هر کابلي، کنـدهاري، مـزاري، ننګرهاري، پکتیاوال، شمالي وال، او نورو وظیفه ده چي یو په خپله برخه کي یو څه ولیکي چي د دې لیکنو له یو ځای کېدو څخه بیا د ټول هیواد عمـومي پېژندګلوي تر لاسه کېدلای سي. طبیعي ده چي زه یې باید د یو کندهاري پـه

توگه له کندهاره راونښلوم. د کندهار اوسنی ښار د تیرو څورلسو کالو په جګړو کې سخت زیانمن سوئ دئ او زه په جرئت سره ویلای سم چي د روسي یرغل په دوران کي به د هیواد هیڅ یو ښار د کندهار په اندازه وران سوئ نه وي. [البته د هیواد پایتخت (ښکلی کابل) هم بیخي ډېر وران سو، خو دا وراني د تنظیم سالارۍ د وخت محصول ده چي د روسانو غیر مستقیم لاس پکښې دئ.] د مجاهدینو تر بري وروسته د کندهار ښار له شاوخوا ولسوالیو څخه ډېر خلك راکډه سوي دي او په ښار کي دننه یې دایمي استوګنه غوره کړې ده. د ښار پخواني اوسېدونکي په سلو کي اوبا مهاجر دي او لا تر اوسه خپلو کورونو ته په بشپړه توګه ستانه سوي نه دي هر ښار د جګړو په تېرېدو او د نویو اوسېدونکو په راتګ سره خپله پخوانۍ څېره له لاسه ورکوي پر محلاتو، بازارو او کوڅو باندي نوي نومونه ایښوول کیږي او که یې د ځایو او محلاتو پخوانی نومونه ثبت نه سي، څو نسله وروسته به د ښار په باب هیڅ راز معلومات په لاس کي نه وي. لکه چي موږ همدا اوس د زاړه کندهار (زوړ ښار) په باب ډېر لږ معلومات لرو چي پر نېست شمېرل کیږي. ما د همدغه مقصد په خاطر د یوې رسالې د لیکلو اراده وکړه او کله چي زما ځیني دوستان خبر سول، ډېره زیاته علاقمندي یې وښووله او زه یې دغه راز لیکني ته ډېر وهڅولم او دغه راز اثر یې له هیواده بهر زلمیانو ته ډېر ګټور وباله. ما هم د دوی علاقمندۍ ته د درناوي په مقصد څه خاوري ایرې سره راغونډې کړې چي دا دئ ستاسي درنو لوستونکو مخی ته پرتې دي. د رسالې محتویات زما شخصي مشاهدات او د ځینو مشرانو روایتونه دي. دغه راز مي له ځینو لیکلو موادو څخه هم استفاده کړې ده چي په متن کي مي ښوولي دي. ما غوښتل چي د دې لیکني له پاره ډېر عکسونه برابر کړم خو ډېر څه په لاس رانغلل. د کندهار به باب څو کاله وړاندي دوه کتابه د ښاغلي محمدولی ځلمی په قلم خپاره سوي دي چي د (کندهار مشاهیر) او (کندهار) نومیږي. زما دا اوسنۍ لیکنه به د هغو له پاره یو نیمګوتې تکمله سي. دغه

پنځه

راز ښاغلي ننګيالي بخرکي هم په ۱۳۶۹ ش کال (د کندهار فولکلور) په نامه يو اثر خپور کړئ دئ چي لوستل يې له ګټي خالي نه دي. څرنګه چي اوس د هيواد پخواني چاپي اثار حتی دننه په هيواد کي لا هم نه پيدا کيږي، ځکه به نو زما دې ليکني ته اړتيا يو څه محسوسه وي.

زه د دې ليکني پر نيمګړتيا ناګاره نه يم. د ډيرو مستحقو کسانو يادونه به زما له قاصر قلمه پاته سوې وي هيله ده درانه لوستونکی دا کار ارادي او قصدي ونه ګڼي. د دې نيمګړتيا عوامل له هيواده ليريوالی، د ماخذو نسته والی او په جلا وطنۍ کي زما روحي نا ارامي کېدلای سي او له دې بابته زه له درنو لوستونکو څخه د بخښني هيله لرم.

په پای کي زه ځان اخلاقاً مکلف ګڼم چي د هغو دوستانو د فرهنګي احساس ستاينه وکړم چي زما سره يې د دغه اثر په چاپولو کي مادي او معنوي مرستي کړي دي. د ټولو دي کور ودان وي.

په درناوی

محمد معصوم هوتک

د اکتوبر شلمه ۱۹۹۶

ټورنټو ـ کانادا



د نارنج ماڼۍ ـ د کندهار زوړ ښار



د نارنج ماڼي . دکندهار زوربنار . د لندن له ګرافیک اخبار څخه
د ۸۸۰ ام کال رسامي

خوش اب و خوش هوا و لطافت نثار شد
شیرین بود که نام خوشش قندهار شد

(علامه محمود طرزی)

## زوړ کندهار

په تاریخي لحاظ د ارغنداب (اراکوزیا) په حوزه کې د اوسني کندهار پر سیمه د احمدشاهي کندهار تر ورانېدو دمخه د دریو ښارو نومونه ثبت دي لومړی ښار د مقدوني سکندر له خوا څه دپاسه دوه زره و درې سوه کاله دمخه د اراکوزي سکندریې په نامه په ۳۲۹ ق م کې جوړ سوی و د دې ښار هیڅ نخښه نه ده پاته. وایي چې اراخوسیا (اراکوزیا) په پخوانیو وختو کې د ارغسان سیمې ته ویل کېده او کله چې اراخوسیانو خپل مرکز له ارغسان څخه و کدروسیا (کندهار) ته نقل کړ نو د ارغند ناوه د اراخوسیا په نامه وبلل سوه. (۱) سکندر به په هره مفتوحه سیمه کې د سکندریې په نامه ښارونه جوړول چې په دې لړ کې یې اریا سکندریه د اوسني هرات په څنګه او قفقاز سکندریه د کابل په (هوپیان) کې جوړه کړې ده. دوهم ښار د سرپوزې د غره ختیځې خواته پروت و. دا سیمه کندهاریان زوړ ښار بولي چې د ارګ مخروبه ودانۍ (نارنج ماڼۍ) یې اوس هم پاته ده. د زاړه کندهار یادونه څه دپاسه یو زر کاله وړاندي د غزنوي دربار شاعر منوچهري داسي کړې ده :

سیصد هزار شهر کنی، به زقیروان
سیصد هزار باغ کنی، به زقندهار

دا ښار د افشار نادر تر تاړاکه پوري لا ودان و او کله چي نړېدوړي د ۱۱۵۰ هجري قمري کال د ذی الحجی د میاشتي په سر کي د هوتکو ملي حکومت ړنګ کړ، ورسره سم يې د کندهار زوړ ښار هم په بشپړه توګه وران کړ. د زاړه ښار شاوخوا سیمه د روسي يرغلګرو سره د جهاد په څورلس کلنه موده کي د مقاومت ستر مرکز ګرزېدلی و، او د مهماتو لوی ډیپوګان پکښې وو. د دې ښار مفصله تشریح خو زما تر وس تېره خبره ده بیا به يې هم ځيني برخي د کتبي او شفاهي منابعو له مخي وڅېړم.

### ۱. نارنج ماڼی :

دا ماڼی د ښار مرکزي کلا (ارګ) او د پاچا د اوسېدلو مېنه وه، د هوتکو په نارو کي د دې ماڼی یادونه داسي ده :

که اور دئ د زینو په غره کي اور دئ
پښتانه په غره کي تیت دي شاه حسین له نارنجه جنګ ته سپور دئ

یا

خدایه څه سوه زرملې پیاده او پلي
شاه برج نادر کوره کئ اوس له غره څه د نارنج سرونه ولي

یا :

که دوړي د نارنج په سر کي دوړي
ایرانیان باندي ګډېږي پښتنو يې تر لښکر ایستلې سوړي

محمدهوتک په پټه خزانه کي د شاه حسین هوتک د معرفی په ترڅ کي د نارنج ماڼی یادونه کوي. دی لیکي : "پادشاه عالم پناه به ارګ کي د قندهار، هغه قصر چي نارنج باله شي هلته به هفته یوه ورځ دربار کا په کتب خانه کي، او په مجلس کي علماء جمع کیږي، او شعراء ټولوي." (۲)

**۲. شاه برج :**

دا برج د زاړه کندهار له څورلسو برجو څخه ډېر اساسي برج و چي د ښار شمالي دروازې ته يې خرمه موقعيت درلود. افشار نادر د دې برج په نيولو کي ډېر تلاښ وکړ، هر وار به ناکام سو په پای کي يې د اشرف توخي او ملا ادينه له خوا په طرحه سوې دسيسه فتح کړ. د شاه برج په باب يوه ناره سته چي وايي :

که نګي پښتني نجوني دُي بـــګي
نادر لوړي تر شاه برج کړې زنبورکي

**۳. د ډېي برج :**

زاړه کندهار دوې کلاوي درلودې، د ډېي برج د دوهمي کلا ډېر مهم برج و چي د کلا په غربي برخه کي واقع و.

**۴. د بدۍ برج :**

د نادري يرغل په وخت کي د دې برج قوماندان ګلخان سهاک نوميدئ چي د ده تر قوماندې لاندي درې سوه کسه وو او د مقاومت په وخت کي ټول شهيدان سول. په دې برخه کي يوه ناره سته. (۳)

که زوره د بدۍ په برج ډېر زوره
شاه حسين هم ور سپور سو خو ګلخان يې نه کئ خلاص له دغه اوره

**۵. د برګۍ دروازه :**

د دې دروازې موقعيت را معلوم نه سو خو په يوه ناره کي يې نوم راغلئ دئ :

که لوړي د برګۍ دروازې لوړي
اوس به خود تا راځه نيسي موږ تمامي کړې د دې سرو ډېري

### ۶. د ماشور دروازه :

د ماشور دروازه د زاړه کندهار جنوبي دروازه وه په همدې نامه یو بازار هم و. (۴) اوس د ماشور په نامه دوه کلي سته چې د ښار جنوب غرب ته پراته دي او د پنجوایي په ولسوالۍ اړه لري.

### ۷. باباولی دروازه :

دا دروازه به عالباً د ښار شمالي لوري ته واقع وه په تواریخ خورشید جهان کي راغلي دي چي شاه حسین هوتک، نادر ته تر دې دروازې دباندي تسلیم سو.

### ۸. د قیتول دروازه * :

د قیتول دروازه به هماغه د باباولي دروازه وي، ځکه د قیتول ځوکه د چل زینې پر سر د زاړه کندهار په شمالي څنډه کي واقع ده. له دې ځوکي څخه د سرپوزې غر دوه ښاخه سوئ دئ یو ښاخ یې مخ پر لویدیځ غزېدلئ او بل مخ پر جنوب، چي دغه جنوبي ښاخ یې د خزې د غره په نامه یادېدئ. د هوتکو په نارو کي د قیتول یادونه ځو ځایه لرو :

که لوړي د قیتول دروازې لوړي
د نادر توپونه مات کړئ هلته هم خیژي د شنو توپو لوخړي

یا :

که غورځي په قیتول کي گولی غورځي
شاه گل پروت کاږه برېتونه زینبو یې له پښو تر سره گرځي

شاه گل د عبدالغفور خان زوی د حاجي انکو لمسی او د یحیی خان کړوسی و چي په همدې دروازه کي د توپ په گولۍ

---

* _ په ځینو کتابو کي د قیطور، قیطول، کیتول په شکلونو لیکل سوئ دئ.



چهل زینې

شهید سوئ دئ. (۵ ــ الف) یحیی خان د ملی قاید حاجي میرویس نیکه ورور کېدئ. بله ناره :

د قیتول پر سر مي ده رابیا ولاړه
یوه لو ناره بې وکړه، د حاجي میرخان ګټلې هولکه ولاړه

## ۹. چل زینه :

چل زینه د زاړه کندهار شمال ته د غره په ډډه کي یو دالان دئ، چي د غره له بیخه زینې ورختلي دي. دالان او زینې دواړه د غره په ډبره کي د اوسپني په قلم کیندل سوي دي. پخوا د دالان دواړو خواووته د ډبري دوه زمریان هم پراته وو چي اوس نسته چل زینه د بابر پادشاه د زوی عسکری میرزا له خوا جوړه سوې ده د ودانۍ کار یې په ۹۳۰ ق کي شروع سوئ او په ۹۵۳ ق کي پای ته رسېدلئ دئ :

که اور دئ د زینو په غره کي اور دئ
پښتانه په غره کي تیت دي شاه حسین له نارنجه جنګ ته سپور دئ

د هوتکو په دې ناره کي چي د نارنج د معرفۍ په برخه کي هم راغلې ده، چل زینې ته اشاره سته.

## ۱۰. د میا صاحب خانقاه :

د زاړه کندهار د نارنج مانۍ مخروبه ودانۍ ته نژدې د میا عبدالحکیم کاکړ (رح) خلوت او خانقاه سته چي کندهاریان یې زیارت ته ورځي میا عبدالحکیم کاکړ چي په نانا صاحب مشهور و، د خانوزیو په کلي کي زېږدېدلئ دئ. (خانوزي د کویټې د اوسني ښار څخه تقریباً ۴۵ میله لیري پروت دئ) د میاصاحب پلار سکندرشاه نومیدئ په کاکړو کي سنتیا او په هغه کي شموزی و. میا عبدالحکیم صاحب د نقشبندیه طریقې پیر و، عارف او عالم

سړی و په زرګونو مریدان یې درلودل. وایي چې شاه حسین هوتک د ده له اقتداره وبېرېدئ او د کندهار له ښاره یې ویوست. یوشاعر ویلي دي :

میاصاحب چې ویوست شاه حسین له دې ښاره
غرقې پاچهي سوه د پیرانو له ګفتاره ( ۵ ـ ب)

## ۱۱. خواجه خضر :

دې ځای ته عوام خواجه خدر وایي او د زاړه ښار جنوب شرق ته واقع دئ. خواجه خضر یو زیارت دئ چې زیاتره په هندوانو اړه لري.

د کندهار هندواڼ په دې عقیده دي چې دا د (جوتی سروپ یا جولی لال) په نامه د یوه روحاني شخص زیارتګاه ده وایي چې نوموړی په همدې ځای کې پر ماهی سپور سو او سمندر ته ولاړ *. په دې ځای کې یو چینه سته چې ځنګ ته یې یوه زړه درخته ولاړه ده او د درختي بیخ ته تل یو ډېوه لګیږي. یوه بله چینه په یوه زیرزمیني کې هم سته چې همیشه ډېوه ورته بل وي هندواڼ په همدې چینو کې لمبیږي او بیا عبادت کوي. دې زیارت ته د کندهار پارسیوانان هغه ښځي راولي چې د میرګي په ناروغي اخته وي. په خواجه خضر کې هندواڼ د جولای (ساوڼ) په میاشت کې یوه بشپړه میاشت میله لري او د مېلې په وروستی شپه سازونه ږغوي او سندري وایي. په دغه شپه به د کندهار مسلمانان او د ولایت والي او نور دولتي مشران هم ورتلل. د هوتکو له نارو پرته مور د زاړه کندهار د ځینو ځایو نومونه د عبدالرحیم هوتک په اشعارو کې هم موندلای سو. مثلاً په دې بیتو کې :

---

* ـ دا خبره ماته په تورنتو کې اوسېدونکي افغان هندو (شام لال) کړې ده.

ښايسته کندهار ډېر ډېر يادومه
نه هيرېږي که يې هر څو هيرومه
خصوصاً د ارغنداب باغ او ولو ته
زړه مې غورځي بيطاقت سم نه درمه
سرپوزه او کاغانک * چې را په زړه سي
اور مې واخلي پر ځان پيک وښورومه
کوکران ** او گونديگان *** د خداى په حکم
څه فيضونه باندي اوري کې شمېرمه
سرپوزه چې لو وياله پکې بهيږي
د ويل رېغ يې مدام پر زړه لرمه
يو دم کښېنه په ايوان د چل زينو کې
تماشا وکړه چې زړه دي سي بېغمه (۶)

يو وار وليداى په سترگو کندهار
ورته ترږى يم بې حده، بې شمار
ارغنداب نهر مې وليداى په سترگو
چې اودس مې باندي وکړاى د سهار
چل زينو لره په شوق وپه ذوق راغلاى
چې وروختاى په امر د ستار
هم تر طاق و هم رواق لاندي يې کښېنم
په ژړا مې دواړه سترگي کړاى خونبار

* ـ د اوسنى سرپوزي بازار شمال ته د ويالې پر غاړه يوه لار وتلې ده چې د کاغانک کلي ته رسيږي. دا کلى د ارغنداب په ولسوالى اړه لري.
** ـ کوکران د کندهار د اوسني ښار غرب ته د هرات ـ کندهار پر لويه لار پروت دئ، د حاجي ميرويس نيکه زيارت په دغه کلي کي دئ.
*** ـ گونديگان هم پر دغه لويه لار واقع دئ. دلته د (ميرويس مېنې) په نامه د ښاروالى ۷ ناحيه جوړه سوېده.

پر زاړه ښهر مي را وړاى قـدمونه
د فراق نارې مي وکړاى په کوکار*

عبدالرحیم هوتک بل ځاى د چل زینې، غونډۍ، د ملا موسی باغ، د ملا گلاب گومبته (چې وايي خنگ ته يې د شهيدانو او خواجه خضر زيارتونه دي)، نومونه راوړي دي چې ښله چل زينو او خواجه خضر څخه د نورو ځايو د موقعيت شرحه اوس ماته ممکن نه ده. د مجمع التواريخ مؤلف ميرزا محمد خليل مرعشی** د تاريخ عباسي، شاه جهان نامه او تاريخ وقايع قندهار په حواله د زاړه قندهار يو تصوير راښيي او ليکي چې د کندهار ښار په پخوا زمانو کي چنداني استحکام نه درلود او کله چې د صفوي شاهانو او د هند د چغتايي سلاطينو تر منځ د همدې ښار پر سرشخړې وسوې کله به د يوه په واک کي او کله به د بل په اختيار کي و، هر يوه به د هغه په ټينگښت او ترميم کي کوښښ کاوه ځو په پاى کي د کندهار کلا دې اندازې ته ورسېده چې په شاوخوا مشهورو کلاوو يې د استحکام له مخې ساري نه و. نوموړى مؤلف د گرگين د واکمنۍ پر وخت د کندهار په باب ليکي چې دا ښار اووه پراخې کلاوي لري چې د (لکي غره) په لوېديځ کې پرتې دي. دا غر په هندي منابعو کي (لکه) بلل سوى دئ د لکي غر همدا د سرپوزې

---

* _ عبدالرحیم هوتک د اتو مليزي زوى او د ملک سلطاني لمسى دئ چي د زابل ولايت د کلات د سيوري په (ښه بولان) کي زېږېدلئ دئ (۱۱۴۰ ق حدود). په درې کلني کي له خپلي کورنۍ سره کندهار ته راغلئ دئ د لسو کالو و چي له خپلي کورنۍ سره نيشابور ته کډه سو له هغه ځايه بخارا ته ولاړ او د ژوند تر پايه هورې و. د اشعارو په ديوان کي يې د کندهار په ياد ډيري سوزناکي چيغي له خولې ايستلي دي.

** _ مجمع التواريخ ۱۰ _ ۱۴ مخونه. دا کتاب د ۱۱۲۰ ق څخه بيا تر ۱۲۰۷ ق پورې د ايران پېښي بيانوي او په دې ترڅ کي د هوتکو د دورې حالات د ايرانيانو له نظره تشريح کوي. مجمع التواريخ وار دواره په ۱۳۲۸ ش کي په تهران کي او بيا په ۱۳۶۲ ش کي چاپ سوئ دئ.

غر دئ البته هغي برخي ته يې د (لکي غر) وايه چي شمالاً او جنوباً پرته ده. وايي چي د دې غره د کلا جگوالی شپږ ذرعه و* تر دې کلا وروسته يوه بله کلا واقع وه او د هغې په منځ کي د ارگ په نامه يوه کلا وه چي د پاچا د استوگي ځای و. دا کلا د نارنج مشهوره کلا يا مانۍ وه. د ښار شاوخوا اووه کلاوي (حصارونه) وو په دې ډول :

ـ د ښار شاوخوا کلا چي (شيرحاجي) يې هم ورته ويل. دا نوم وروسته په (شيرازه) باندي اوښتئ دئ. ـ دوهمه کلا هنديانو (دولت اباد) او ايرانيانو (قلعه بدن) بللې ده. ـ دريمه کلا د منډوي په نامه يادېدله. ـ څلرمه د ارگ کلا وه. ـ پنځمه د قيتول د غره د سر کلا وه. ـ شپږمه کلا عليمردان خان جوړه کړې وه. ـ اوومه کلا د چل زينې د غره کلا وه.

ښار پنځه دروازې درلودې : ـ د ماشور دروازه، د بابا ولي دروازه، د ويس قرني دروازه، د خوجه خضر دروازه او د علی قاپی دروازه**. د ښار د اوو کلاوو د برجونو شمېر تر پنځوسو اوښتئ چي مشهور يې دا دي : د مجنون قتال بابا برج، خاکستر برج، د ډډي برج. د کندهار زوړ ښار په ځينو منابعو کي د (شهر کهنه شاه حسيني) په نامه ياد سوئ دئ. (۷) دا وو هغه متفرق معلومات چي موږ يې د کندهار د زاړه ښار په باب لرو. دې ښار د مثلث شکل درلود شمالي خوا يې د کندهار ـ هرات لويي لاري ته، شرقي خوا يې د اوسني کندهار نوي ښار ته څرمه او جنوبي خوا يې د ماشور پر دروازه ختمېده. (۸)

---

* ـ ذرع د اوږدوالي پخوانی واحد دئ او اندازه يې د عادي انسان د لاس له څنگل څخه د گوتو تر سرو پوري ده، خو دا چي د دغي کلا جگوالی دي شپږ ذرعه و . ماته د تامل وړ ښکاري.

** ـ د دروازو د موقعيت په ښوولو کي د مجمع التواريخ ليکني د تامل وړ دي.

## نادر اباد

دریم ښار د نادراباد په نامه یوه نظامي کلا وه چي په ۱۱۵۰ هجري قمري کي د نادر افشار له خوا جوړه سوې وه. افشار نادر د کندهار د ملي حکومت د ړنګېدو په خاطر د کندهار زوړ ښار پوره یو کال کلابند کړئ او د کندهاریانو له سخت مقاومت سره مخامخ و. دا مقاومت تر بې شمېره قربانیو وروسته مات سو او د کندهار ملي حکومت نسکور او ښار د نادري لښکرو له خوا په بشپړه توګه له منځه یووړل سو. د کندهار خلکو په حقه سره افشار نادر ته د "خوني نادر" لقب ورکړی و. ده د ښار پر اوسېدونکو غلجیو قومو باندي حکم وکړ چي یو مخیزه له ښاره ووزي هغوي یې په نیشابور او خراسان کي هغو سیمو ته تبعید کړل چي پخوا ابدالیان پکښې میشته سوي وو. ابدالیان یې بیرته خپلي اولنۍ سیمي (کندهار) ته راوستل (۱۰).

افشار نادر د کلابندۍ په دوران کي د اوسني کندهار جنوب ته د شیرسرخ زیارت په شاوخوا کي یو ښار جوړ کړ چي د تاریخ احمدشاهي په استناد یوه محقره کړه وړه کلا وه او پراخوالی یې د پخواني ښار له خلرمي برخي سره برابر نه و(۹) اعلیحضرت احمدشاه بابا د خپلي تاجپوشۍ مراسم د همدې کلا تر څنګ د شیر سرخ بابا په زیارت کي سرته ورسول (۲٦ جولای ۱۷۴۷ م) او د سلطنت تر لسم کال پوري په همدې ښار (کلا) کي اوسېدئ چي بیا یې د نوي ښار د جوړېدو تکل وکړ.

د نادر اباد کلا تر ۱۲۵۵ ق (۱۸۳۹ م) پوري لا ولاړه وه د همدې کال د اپريل پر شلمه (۱۳ صفر ۱۲۵۵ ق) شاه شجاع د سرجان مارکی په مشري له Indus Army سره د سند او بولان له لاري کندهار ته راغئ او د دوهم وار لپاره پر تخت کښېنوست. دمخه تر دې چې شاه شجاع او انګريزي لښکر د کندهار احمدشاهي ښار ونيسي، په "قلعه نادری" يا همدغه نادراباد کې يې واړول. د تاريخ سلطاني مؤلف ليکي : "الغرض پادشاه مذکور در مدت يکماه مطابق سلخ ذيحجه سنه مذکوره به بند ذاکر که تا قندهار يک فرسخ فاصله دارد رسيدند ... علی الصباح شاه شجاع با تيپ های اراسته و صفوف پيراسته از انجا کوچيده و بنه را درميان گرفته در قلعه نادرشاه سکنا گزيد. " (۱۱) له قلعه نادرشاه څخه مطلب همدا نادر اباد دئ. ګويا دغه ښارګوټی يا نظامی کلا تر جوړېدو وروسته څه دپاسه سل کاله لا نوره هم ولاړه او د استوګني وړ وه او په يقين سره ويلای سو چې ډېر کلونه به نوره هم ودانه وه اوس يې بولګه نسته خو د شيرسرخ زيارت او ګومبته لا سته. شاه شجاع او انګريزي لښکر دوې مياشتي په دغه ښارګوټي کې اړولي وو. دغه سيمه اوس زياتره زراعتي مځکي يا چمنونه دي.

قندهار ان کشور مینو سواد
اهل دل را خاک او خاک مراد
کوی ان شهر است ما را کوی دوست
ساربان بربند محمل سوی دوست

(علامه اقبال لاهوری)

## اشرف البلاد

## احمدشاهي کندهار

لوی احمدشاه بابا (۱۱۶۰ _ ۱۱۸۶ ق) د خپل سلطنت له لومړيو وختو څخه په دې فکر وچې د هیواد د پایتخت په توګه د کندهار نوی ښار جوړ کړي ځکه د نادراباد نظامی کلا له یوې خوا دومره پراخه نه وه چې د یوې ستري امپراتورۍ د پایتخت لپاره دي مناسبه او موزونه وي او له بلي خوا یې موقعیت هم پر یوه داسي سیمه وچې ډېره نمناکه وه په تېره بیا کله چې به په ژمي کي زیات بارانونه واورېدل او سېلاوونه به راغلل، د دغي کلا زیاتره ودانۍ به زیانمني سوې. په روغتیایي لحاظ هم خرنګه چې چمني مځکه وه او ډېري غوماشي یې درلودې، د ښار لپاره ناوړه وه *. ځکه نو ستر ټولواک د پاچهۍ په لسم کال (۱۱۶۹ ق) وپتیله چې نوی ښار باید جوړ سي او د همدې مقصد له پاره یې له خپلو مشاورینو، د قومونو له مشرانو او صاحب نظرو سره مشوره پیل کړه. د نظریو د راغونډولو په ترڅ کي ځینو ویل چې پخوانی کلا دي ترمیم سي او زوړ ښار دي له سره ودان سي خو ځینو بیا داسي نظر

* _ دا مطلب په تاریخ سلطاني ۱۴۲ مخ، سراج التواریخ ۲۵ مخ، احمدشاه بابای افغان (د غبار تالیف) ۱۷۵ مخ کي راغلی دئ.

ورکړ چي نوی ښار باید له سره جوړ سي. لوی احمدشاه بابا د دغو دواړو نظریو په باب شخصاً څېړنه پیل کړه. د تاریخ احمدشاهي مؤلف محمود الحسیني الجامی لیکي چي اعلیحضرت له خپلو سلاکارانو سره زاړه ښار ته ولاړ، د هغه ځای له اوسېدونکو سره یې وکتل هغوي له دې امله چي د غره په بغل کي اوسېدل، په دوبي کي یې له ګرمۍ څخه شکایت درلود او ځیني نور عیبونه یې هم ورته بیان کړل. د اعلیحضرت احمدشاه بابا نظر پر دې سو چي د ښار لپاره باید ځای ولټول سي په همدې تلاښ کي و چي د اوسني کندهار پر سیمه یې نظر برابر او دا ځای یې خوښ سو. دا سیمه پخوا په مجموع کي د ده خواجه په نامه یادېدله (د ښار تر جوړېدو وروسته هغه سیمه ده خواجه مشهوره سوه چي تر کابل دروازې دباندي پرته ده مګر په حقیقت کي د کندهار نوی ښار "اشرف البلاد" ټول په ده خواجه کي واقع دئ) تاریخ احمدشاهي چي د لوی احمدشاه بابا په ژوند کي د ده تر مستقیم نظر لاندي لیکل سوئ او په دې برخه کي تر نورو تاریخو مستند دئ، په دې باب داسي راوړي : "شهریار سلیمان اقتدار ... به تفحص جای دیگر متوجه شدند ناگاه قطعه زمینی معروف به ده خواجه بنظر فیض اثر در امد که رودخانه موسوم به پاتاب متصل ان خطه ارم مثال در جریان بوده ... انمکان دلپذیر لایق تعمیر و پسند خاطر خطیر افتاد. " (۱۲) [باید وویل سي چي پاتاب (پاتاو) د رودخانې نوم نه دئ، بلکي د هغه کانال نوم دئ چي د ارغنداب له رود څخه راولاړ سوئ او د کندهارښار په منځ کي تېر سوئ دئ. پاتاو د خوجه ملک په سیمه کي له ارغنداب روده رابیلېږي.] لوی ټولواک د دغه ځای تر خوښېدو وروسته د همدې کال یعني د ۱۱۶۹ ق کال د ربیع الثانی (دوهمی خور) په لومړۍ ورځ د احمدشاهی کندهار د تاداو ډبره کښېښووله. دا ورځ د پخواني رسم و رواج له مخي د

سعادت خان منشي له خوا د دولت د نورو منجمانو په مشوره د نجومو محاسباتو له مخي د ښار د بنسټ ایښوولو لـه پاره مناسبه او نېکمرغه ورځ بلل سوې وه. د ښار د تاداو ایښوولو په مراسمو کي اعلیحضرت لوی احمدشاه بابا له دوعا وروسته خورا ډېري شیریني او له اندازې زیاتي پیسې د نیک شگون او خیرات په توگه پر حاضرینو باندي د برخوردار خان په واسطه وویشلې. د ښار د ودانولو عمومي سرپرستي یې د نوموړي برخوردارخان ورور ابدال خان ته ورکړه خو د ښار د ودانولو کار یې پر څو برخو وویشه او هره برخه یې د ښار مخورو، سپین ږیرو، خانانو، د قومونو مشرانو او د ولایتو والیانو (بیگلرگیگانو) ته ورکړه * پر دې ښار یې اشرف البلاد احمدشاهي کندهار نوم کښېښو. په دې باب د تاریخ احمدشاهي روایت داسي دئ: "نام سابقش که شهر مقصود مقرر شده بود موقوف داشته باشرف البلاد احمدشاهي موسوم ساختند و نارین قلعه فلک درجه مشتمل برعمارات ملوکانه و منازل شاهانه و باغات فراخ دلکشا و کاروانسرا و بازار و چارسوق و چار رسته بافضا که کشش هر یک به نیم فرسخ میشود مقرر ساخته و در هر بازار خیابان دوکانها در کمال زیب و حسن ترتیب قرار داده و در کنار خیابان از دو طرف پیش دکان جوی آبی روان و بر لب جوی از یمین و یسار اشجار سایه دار و میوه دار از قبیل توت و زردالو و چنار سرسبز ... و بپای درختان آب صافی در جریان بوده..." (۱۳) همدا مؤلف لیکي چي د ښار د سمسورتیا په خاطر یې پر پاتاو سربېره یوه بله واله هم له ارغنداب رود څخه وکیندله، چي دا به نو غالباً شاه واله وي؟ د "تاریخ احمدشاهي" تر خپرېدو وړاندي زیاتره مؤرخین د کندهار د

* ـ زموږ د کورنۍ دوه مشران (محبت نیکه او صحبت نیکه) یې هم له سیوري څخه په همدې منظور راغوښتي وو. (م. هوتک)

اوسني ښار جوړېدل د ۱۱۷۴ ق کال په پېښو کې راوړي چې تېروتنه ده. د احمدشاهی کندهار تاداو د ۱۱۶۹ ق کال په دوهمه خور کې اېښوول سوئ دئ. دې مسئلې ته د لومړي ځل لپاره فاضل استاد پوهاند رشاد متوجه سو او د کلونو کلونو تېروتنه يې اصلاح کړه. په تاريخ سلطاني کې راغلي دي چې په دغه کال دراني احمدشاه له هندوستانه کندهار ته راستون سو څرنګه چې تل يې په خيال کې و چې يو بل ښار پر يوه مناسبه سيمه جوړ کړي ځکه يې نو په ټينګه عزم وکړ او لومړی يې يوه ژوره واله د ارغنداب رود په لوېديځ کې وکښل او دښت ته يې وخيژوله* او غوښتل يې چې په دغه ځای کې ښار جوړ کړي خو د هغه سيمې اوسېدونکو ونه منله. بيا يې د ترنک رود پر غاړه د ښار جوړولو اراده وکړه. دلته بيا بارکزو موافقه ونکړه. په پای کې د پوپلزو مشرانو دغه د اوسني ښار ځکه ورته پيشنهاد کړه او لوی احمدشاه بابا هم ومنله. د تاريخ سلطاني خپل بيان داسي دئ: "ليکن چون ان موضع در قسمت غنی خانی** متعلق گروه الکوزيی بود و ايشان از ساختن شهر در جوار خود ابا مينود، فسخ غزيمت نموده بعد از چندی که والده شاه روانه داربقا شد، در انجا دفن ساختند و ان موضع را به روضه موسوم کرد *** بعد ازان خواست که شهر را در حدود غربی قريه مسمی به

---

* _ دا واله د کوهک د کلي واله ده چې اوس هم بهيږي.

** __ عبدالغنی خان الکوزی يو جاه طلبه سړی و. د نادر افشار په لښکرو کې يې د پښتنو پر ضد توري وهلې کله چې نادر د هرات د ابداليانو حکومت او بيا د کندهار د هوتکو سلطنت چپه کاوه، په دواړو کې يې همدغه عبدالغني خان همکار و. د دې خدمتو په بدل کې ورته نادر د کندهار والي (بيګلربيګي) منصب ورکړ. د احمدشاه بابا په پاچهي کې دا سړی له اقتداره ولوېد.

*** _ د لوی احمدشاه بابا مور زرغونه انا نومېدله په قوم الکوزی وه زيارت يې د ارغنداب رود پر غربي څنډه د کوهک کلي ته نژدې پر يوه کوچني غره واقع دئ او ګومبته پر ولاړه ده.

مردقلعه* بسازد و آب ترنک را که در عذوبت با تسنیم کوثر لاف مساوات میزند در میان شهرجاری کند اما طایفه بارکزیه نیز بصورت الکوزیی تعمیر شهر را در جوار خود نگذاشتند، احمدشاه که مرد حلیم بود ایشان را نیز ازرده ننمود تا اینکه طایفه پوپل زیی را رگ هم قومی و وسیله رحم در امده به احمدشاه گفتند که در هر موضع از املاک ما شما را بجهته تعمیر شهر پسند باشد مضایقه نداریم. (۱۴)" احمدشاه بابا له دوی څخه ډېر خوشحاله سو او پر دغه ځای یې چې اوس ښار ودان دئ، رجه وکښله او دوولس قلبې مځکه یې چې شپږ سوه جریبه کیږي د ښار له پاره غوره کړه او ټولو درانیو او نورو قومو ته یې ځای ورکړ چې هر څوک د ځان له پاره مېنه جوړه کړي. تاریخ سلطاني وایي چې د کلا دېوال یې د هندي او ایراني استادانو په مرسته جوړ کړ او د ښار په منځ کې یې د څلورو بازارو په تقاطع کې یوه لویه گومبته ودروله چې "سی ذرع در سی ذرع است" دا گومبته د چارسو پخواني گومبته ده چې بیان به یې وروسته راسي. د تاریخ سلطاني د پورتني روایت ملاتړ د سردار عبدالله خان پوپلزي (وکیل الدوله) په یو شعر کې هم موندلای سو، دی وایي :

خدایه ته راکــــې لاس د ښندني
چې زما پر مځکو، مېنې سي پلنې
دا قنـــــدهار به، بیرته اباد سي
ستا د مربې به . زړګی په ښاد سي
بخښنو احمد ته، مځـــکې مالونه
د ده خپلوان یو. پښتانه یونه (۱۵)

---

* _ مردقلعه (مرت کلا) د اوسني کندهار جنوب لویدیځ ته د ترنک رود پر شمالي څنډه یو کلی دئ، بارکزي پکښې اوسي.

وکیل الدوله د احمدشاهي عصر ستر مخور او د پښتو ژبې شاعر و. د کندهار ښار د تاداو ایښوولو جریان یې په یو قطعه کې ویلئ دئ چي په دې بیت شروع کیږي :

دمیکه شاه شهامت مدار احمدشاه
باستواری همت بنای شـــهر نهاد

د احمدشاهي ښار په باب ځینو نورو تاریخونو هم یادوني کړي او له هغې جملې څخه په حیات افغاني کي راغلي دي : "د ښار شاوخوا ته خامه کلا او د دریو میلو خندق په واسطه احاطه سوئ دئ تقریباً شپېته زره کسه په دغه ځای کي ژوند کوي، یوه زړه کلا د دغه ښار شمال خواته پرته ده چي د هغه ځای خلک یې د ارگ په نامه یادوي، د احمدشاه بابا مقبره او خرقه په ښار کي دننه لویدیځ خواته موقعیت لري ... چارسو یعنی د چوک بازار د پنځوسو گزو په پلنوالي د گنبدي په شکل پوښل شوئ دئ ... په کندهار کي د سوداگرانو د استوگني لپاره څو سرایونه هم جوړ سوي دي ــ د گنج بازار په نوم منډیي کي هر ډول حیوانات او زراعتي حاصلات لکه پنبه او نور خرڅیږي." (۱٦) میجرایش والر (Majer Ashe Waller) انگریز لیکي : "کندهار د دراني امپراتوری لرغونی پایتخت دئ چي د دوی پاچهان پکښي ښخ دي ــ د ارغنداب او ترنک رود تر منځ پروت دئ له کلات غلزایي څخه د ۸۹ میلو په فاصله جنوب غرب ته او د کویټې د شمال غرب په ۱۴۴ میلي کي موقعیت لري. ښار په یوه همواره سمسوره سیمه کي پروت او د ختو په جگو دېوانو احاطه سوئ دئ په کونجانو کي غټ برجونه او پراخ خندق لري. د ښار محیط خلور میله دئ او تقریباً شل زره کوره لري چي په عمومي توگه له اومو خښتو څخه جوړ سوي دي په داسي حال کي چي د بډایانو کورونه د گچو سپین پلستر لري او له لیري د ملغلرو په شان معلومیږي ... د احمدشاه بابا

قبر ... د ښار ډېره جذابه ودانۍ ده چې د مسافرو د زیاتې پاملرنې وړ ګرزي." (۱۷)

دغه راز یو بل انګریز انجینر چې فرانګ ای مارتین (Frank A. Martin) نومېږي د کندهار ښار ته تللئ او د هغه وخت کندهار یې په لنډ ډول معرفي کړئ دئ. نوموړي د امیر عبدالرحمان خان او امیر حبیب الله خان (سراج المله والدین) په وخت کې اته کاله پر له پسې په کابل کې اوسېدلئ دئ کله چې د امیر حبیب الله خان زوی شهزاده نصرالله خان د ۱۸۹۵ م کال په دوبی که د انګریزانو په بلنه انګلستان ته ولاړ، د راستنېدو په وخت کې یې نوموړي فرانک مارتین له لندنه تر کابله پورې په ټول سفر کې ملګری و. شهزاده نصرالله خان له لندن څخه پاریس ، روم، ناپلس Naples ته ولاړ، وروسته د بحر له لارې کراچۍ ته، بیا په ریل کې چمن ته او له هغه ځایه کندهار او ورپسې کابل ته ستون سوئ دئ. فرانک مارتین د خپل دې اوږده سفر بیان په یو کتاب کې کښلئ چې Under The Absolute Amir نومېږي او په ۱۹۰۷ م کال په لندن کې چاپ سوئ دئ. فرانک مارتین هنرمند سړی و د افغانستان ځینې ځایونه، د امیر دربار او تصویرونه یې پخپل قلم رسامي کړي او په دغه کتاب کې یې چاپ کړي دي. نوموړي د کندهار ښار مفصله تشریح نه ده کښلې، یوازې یې دومره لیکلي چې : "کندهار د شنو کروندو په منځ کې پروت دئ ... د یوه جګ دېوال په واسطه احاطه سوئ دئ کورونه یې زیاتره له ختو او ډېرو یا اومو خښتو څخه جوړ دي. ټول ښار د وروستیو شلو کلونو په جګړو کې ډېر وران سوئ * چې وروسته ترمیم سوئ هم نه دئ.

د کندهار ښار د لنډې تاریخچې له لیکلو وروسته غواړم د دې تاریخي ښار نسبتاً مفصله تشریح وکاږم.

---

* _ مقصد یې هغه جنګونه دي چې یا له انګریزانو سره سوي او یا د امیر دوست محمد خان تر مرګ وروسته د امیر د زامنو تر منځ پېښ سوي دي. د فرانک مارتین دغه کتاب ما په پښتو ژباړلی او تر چاپ لاندې دئ.

**چارسو :**

د احمدشاهي کندهار مرکز د چارسو چوک دئ چي د ښار ځلور مشهور بازارونه (کابل بازار ـ شاه بازار ـ هرات بازار ـ ښکارپر بازار) يې سره وصل کړي دي. په لومړي سر کي د چارسو چوک پوښل سوئ و او ما له خپلو مشرانو څخه اورېدلي دي چي د چارسو پر سر د کوتوالی دفتر و (کوتوالي د امنیه قوماندانۍ په شان يوه پوليسي اداره وه چي د ښار امنيت يې ساته) د چارسو د غولي پراخوالی ديرش گزه په ديرش گزه کي دئ، گومبته يې د يوه هندی معمار له خوا ډيزاين سوې وه. تاريخ سلطانی په دې باب يوه کيسه بيانوي او ليکي : "کله چي د گومبتي پايې (ستني) بشپړي سوې، نوموړی معمار نيشاپور ته وتښتېدئ احمدشاه بابا غوښتل چي د ښار د جوړېدو چاري ډيري چټکي پر مخ ولاړي سي ځکه يې نورو معمارانو ته د چارسو پوښلو امر وکړ مگر معمارانو ځانونه کښل او په دې ترخ کي شپږ مياشتي کار وځنډېدئ په پای کي اصلي معمار له نيشاپوره راستون سو، کله چي د تيښتي علت ځيني وپوښتل سو ويې ويل : د داسي لويي کومبتي پايې بايد سيي وچي سي چي تر پوښلو وروسته يې د کښېنستلو احتمال بيخي له منځه ولاړ سي ما چي د اعليحضرت تلوار ته کتل له امره مي غاړه نسوای غړولای، مجبور وم گومبته به مې پوښلای چي دې کار زما له بدنامۍ او د تعمير له ورانۍ پرته بله نتيجه نه درلوده، ځکه نو وتښتېدم. اوس چي پايې د کښېنستلو له خطره وژغورل سوې، بيرته راغلم او کار ته دوام ورکوم. وايي چي پاچا يې عذر ومانه او انعام يې لا هم ورکړ.

د چارسو چوک د پخواني شکل يو مشاهد (حاجي عبدالمجيد هوتک) خپل مشاهدات ماته د يو ليک په ترخ کي داسي ليکلي دي :

چارسو یوه لو گومبته وه، چې پوښښ یې باید یوه حیرانوونکې کارنامه وبلل سي. دومره لو گومبته چې په جګواله کې د اوسنیو څلور منزله تعمیراتو سره برابره وه بې له سیخ و ګاډره په پخو خښتو پوښل په رشتیا سره هم یوه لویه کارنامه ده چې د احمدشاهي عصر له ښیګڼو څخه ګڼل کیږي. دننه په چارسو کې شمالي او غربي خواته پیره دارخانه وه چې (میرشوانان) * پکښې اوسېدل. جنوب او شرق ته یې درې منزله (تیمچه) ** وه چې بزازانو پکښې دوکانونه درلودل او دغه راز یې پر دوو نورو کونجانو د بزازۍ لوی دوکانونه وو. د هر بازار په خوله کې چې د ګومبتي پایې وې، پر یوه طرف او بل طرف د زرګرانو یا خورده فروشانو شپږ شپږ دوکانونه واقع وو. د شاه بازار پر خوا تر پوښلي چارسو پوري تنګ بازار و چې یوې خوا ته یې قنادان او بلې ته صدرۍ پلوروونکي او الغبندان وو د ګومبتي پر سر کوتوالي وه چې د کوتوال د ناستې سالون او د میرزایانو دفتر او تحویلخانې او دغه راز د کوتوالۍ د میرشانانو کوټې او د استوګنې ځایونه پکښې وو. د ګومبتې پر سر به نغارې هم پرتې وې چې د روژې په میاشت کې به یې د پیشملي د اعلان یا نورو اعلانو لپاره ډنګولې چې وروسته د دې نغارو پر ځای باجه خانه وهل کېده.*** چارسو او د هغه ټول ملحقات د وزیر محمدګل خان مومند په وخت کې (۱۳۱۲ ش) د ده په امر د بازار

---

* _ میرشو (میرشب) یوه نظامي رتبه وه چې وظیفه یې د بازار او کوڅو امنیت ساتل و. میرشبګیر د ښار ګوتوال ته وایي. (غیاث اللغات)

** _ "تیم" په لغت کې لوی تجارتي سرای ته وایي (افغان قاموس) تیمچه یې اسم تصغیر دئ یعنې کوچنی تجارتي سرای.

*** _ د باجه خانې په واسطه د پیشلمي د اعلان عنعنه تر تیرو دیرشو پنځه دیرشو کالو پوري لا موجوده وه زما په یاد ده. باید ووایم چې کندهاریان باجې (Harmonica) ته باجه خانه وایي، نه پوهېږم چې ولې؟



پوښلی چارسو د کابل بازار مدخل

د خولو د تنگوالي په نسبت ونړول سول. دا چوک چي زما (م. هوتک) په یاد دئ، په همدې اوسني شکل و. د چوک پر جنوب شرقي، شمال شرقي، او جنوب غربي راسته کي د بزازانو دوکانونه او په شمال غربي راسته کي د قنادانو دوکانونه دي. هره راسته درې غټ دوکانونه لري. د چوک شمالي خواته شاه بازار، جنوبي لور ته یې ښکارپر بازار، شرق ته یې کابل بازار او غربي پلو ته یې هرات بازار واقع دئ. په دې څلورو بازارو کي د کابل بازار او هرات بازار اوږدوالی تقریباً سره یو شان دئ، شاه بازار تر ټولو لنډ او ښکارپر بازار تر ټولو اوږد بازار دئ.

## کابل بازار :

دا بازار له چارسو څخه مخ پر شرق غزېدلئ دئ. په شروع کي یې شمالي خوا ته د لېړانو * دوکانونه واقع دي چي د بازار د اوږدوالي تقریباً دریمه برخه یې نیولې ده. د دې دوکانو په پای کي د (راجا) په نامه یو تجارتي سرای واقع دئ چي یو کوچنی تجارتي مرکز او د سوداگرو تجارتخانې پکښې دي. د لېړانو د دوکانو په منځ کي د پوښلي چارسو خوله را خلاصه ده د راجا تر سرای وروسته د بامیزو تر کوځې پوري متفرق دوکانونه دي د بامیزو کوځې یوه خوله د کابل بازار د شمالي راستې په منځ کي د قاضي غلام کوځې پر مخامخ راوتلې ده په دې کوځه کي د پاتاو پر شمالي څنډه د کابل بازار حمام واقع دئ. د بامیزو تر کوځې وروسته د بوټ سازانو دوکانونه وو خو کله چي دا صنعت د له منځه تلو په حال کي سو، دوکانونه یې د بېلابیلو دندو خلکو واخیستل اوس په

---

* _ لېړ هغه چاته ویل کیږي چي کمبلي، سطرنجی، جوالونه، تلتکان او نیالی خرڅوي لغوي معنا یې (کهنه فروش) ده. (ظفر اللغات. لس زره پښتو لغتونه)

دې بازار کي د بوټ سازۍ يو دوکان لا هم نسته* د کابل بازار د شمالي راستې په پای کي د کابل دروازې چوک ته څرمه د خارندويانو (پوليسو) برج واقع و. دا برج د دوکانو پر سر (دوهم منزل) موقعيت درلود، په پخو خښتو جوړ سوئ و چي له روسانو سره د جهاد په کلونو کي کنډواله سو ** د احمدشاهي کندهار کلا د همدې برج غربي خواته واقع ده. کلا ته څرمه کوڅه کلا فصيل نوميږي چي په حقيقت کي د زړې کلا د فصيل برخه وه.

له چارسو څخه د کابل بازار جنوبي راسته (مخ پر شرق) په يو تجارتي مارکيټ پيل کيږي چي نوم يې ( د حاجي عبدالرحيم سرای) دئ. د دغي برخي زياتره دوکانونه بزازان دي.

د حاجي عبدالرحيم د سرای شرقي دېوال د يحيى خان *** په کوڅه کي واقع دئ دغه کوڅه د کابل بازار په جنوبي راسته کي لومړۍ کوڅه او پوښلي چارسو ته مخامخ پرته ده.

---

* ـ په کندهار کي د بوټ جوړولو لاسي صنعت ډېر ښه رونق درلود. ډېر ماهر بوټ سازان مو درلودل د کندهار يو مشهور بوټ ساز حاجي غلام فاروق نومېدئ چي په اماني عصر کي يې اعليحضرت امان الله خان ته هم موزې جوړولې. حاجي غلام فاروق د پښتو او فارسي ژبو ښه شاعر و. د پښتو اشعارو مجموعه يې چاپ سوې هم ده. د بوټ سازانو دوکانونه وروسته هرات دروازې ته نقل سول خو د ليلامي بوټونو په تجارت سره دا صنعت ورو ـ ورو له منځه ولاړ. افغاني مهاجرينو دا صنعت په کوئټه بلوچستان کي بيرته ژوندی کړئ دئ.

** ـ د برج ودانې د حاجي غلام محمد پوپلزی ملکيت و. حاجي صاحب د کندهار يو معمر سپين ږيری او د مرحوم حاجي عطامحمد خان زوی دئ اوس په کراچي کي اوسي عمر يې اتيا کالو ته رسيږي. د حاجي عطامحمد خان کورنۍ د کندهار په دوهمه ناحيه کي اوسېدله. مسجد او کورونه يې اوس هم ولاړ دي.

*** ـ يحيى خان پوپلزی د امير دوست محمد خان د عصر له مشاهيرو څخه دئ او د دې کوڅې زياتره اوسېدونکي د نوموړي يحيى خان او د خانخانان سپهسالار سردار جانخان پوپلزی اولاده ده. د يحيى خان زوی تاج محمد خان د ميوند په تاريخي غزا کي برخه اخيستې وه.

د یحیی خان له کوټې څخه د زرګرانو دوکانونه شروع کیږي او تر کچارۍ * پورې رسیږي د کچارۍ په ودانۍ کې د قادري درملتون په نامه یوه دواخانه جوړه سوې ده دا درملتون په کندهار کې لومړنی عصري درملتون دئ چې تقریباً څلوېښت کاله وړاندې جوړ سوئ او څښتن یې حاجي عبدالحی قادري ** و.

د دې درملتون څنګ ته په دې وروستیو وختو کې دوه نور درملتونونه چې یو یې د کندهار په یوه پخواني ډاکټر عبدالعزیز اړه درلوده، خو پخوا دا برخه د یوناني طبیبانو دوکانونه وو چې ټول هندواڼ وو.

---

* ـ کچارۍ یا کچرۍ هغه ځای ته وایي چې دعوې پکښې فیصله کیږي (ظفر اللغات) رحمان بابا وایي :

د وصال دلالان کوم طرف ته غواړم
چې بندي شوم د هجران په کچرۍ

د کابل بازار پر همدې ځای پخوا د (فیصله منازعات) په نامه د تجارتي محکمې دفتر واقع و څکه نو خلک دغه ځای ته کچارۍ وایي. خوان نسل له دغه نامه سره اشنا نه دئ خو سپین ږیري یې اوس هم په دغه نامه بولي. وروسته په دغه ځای کې د کندهار ګمرک جوړ سو. وروسته د (افغان مطبعې) په نامه لومړنۍ شخصي مطبعه پکښې تاسیس سوه. دا مطبعه د کندهار د یوه ملي سوداګر حاجي عبدالشکور خان کاکړ په شخصي پانګه جوړه سوې وه.

** ـ حاجي عبدالحی هوتک قادری او ورور یې حاجي عبدالقاهر قادري دوه مشور سوداګر وو په تېره بیا حاجي عبدالحی ډېر خیراندیش او خیر رسان سړی و پر بېوزلو او غریبانو یې همېشنۍ پېرزوینه درلوده. له کندهاره تر کابله یې پر هر رباط باندې د اوبو څاهان وکینل، سلواغې یې پر وځرولې چې مسافرو به تنده پر ماتوله. د دې صدقهٔ جاریه اثر له روسانو سره د جهاد په کلونو کې ډېر زیات و څکه زموږ د تندي چولاوه مجاهدین به پر همدې څاهانو اوبېدل او خیر به حاجي صاحب مرحوم ته رسېدئ. د کابل ـ کندهار تر منځ لومړنی منظم او عصري ټرانسپورټ د ده له خوا جوړ سو، حج ته د لومړي ځل لپاره د ده له خوا زمیني کاروان ولاړ. حاجي عبدالحی قادري په څو کاله وړاندې د حج د فریضې اداکولو پر وخت وفات سو او په جنت باقیه کې ښخ دئ. خدای دې وبخښي.

مشهور طبیبان یې بیربل او پلار یې کشن چند، تیک چند او پلار یې راجکور، دیوان رتو، دیوان بونا، دیوان چندا او نور وو (وایي چي دیوان چندا د عربی ژبي عالم هم و او په اسلامي علومو کي یې مطالعه درلودل). *

د طبیبانو د دوکانو پای یو بل تجارتی مارکیټ ته رسیدلئ و چي د سپنسیو کار پکښي کېدئ د سرای متصل کوځه د قاضی غلام کوځه نومیږئ.

دا کوځه اصلاً د پوپلزو کوځه وه چي د قاضی غلام محمد د اوسېدلو په خاطر د ده په ناه مشهوره سوه محلی خلکو دا کوځه (نایب دهنه) بلله، له نایب څخه مقصد نایب گل محمدخان دئ چي د اسلام خان زوی د محراب خان لمسی او د سهراب خان کړوسی په قوم پوپلزی په پوپلزو کي منگل زی قلندرزی بادوزی و (۱۹) او د شاه محمود سدوزي په پاچهي کي د کندهار نایب الحکومه و.

د نایب گل محمد خان کورنۍ متاخر کسان حاجي محمد انور او حاجي امین الله دوه ورونه وو چي د همدې کوڅې په پای کي چي (شنه مامته) ورته وایي، اوسېدل.

د حاجي محمد انور زامن اوس په نیویارک کي اوسي مشر زوی یې محمدنور نومیږئ او په (تورجان) مشهور دئ.

---

* _ د کندهار له مشهورو مسلمانانو طبیبانو څخه محمود اخندزاده، احمدجان طبیب، عبدالاحد اخندزاده داوی (د اروانباد عبدالهادی خان داوي پلار)، ملا عبدالخالق طبیب (د عبدالاحد اخندزاده "غریبک" پلار)، ملا عبدالطیف تره کی د کابل بازار، نورمحمد طبیب د ښکار بازار، ملا محمد عثمان اخند د شاه بازار، مولوی طبیب د کابل دروازې او نور.

له قاضي غلام کوځې * وروسته (مخ پر شرق) د حلوايانو دوکانونه وو چي دوکانداران يې هندوان وو. زما چي په ياد دي پخوا په کندهار کي شيدې اکثراً حلوايانو خرخولې که څه هم د ګاودارانو په نامه يوه کوڅه هم سته چي د ښار په دوهمه ناحيه کي ده او دغه راز د ښار په بېلابيلو کوځو کي هم ګاوداران وو لکه حاجي مجيد ګاودار (د ساګزو د کوځې)، غفار ګودار (د کابل دروازې) پير ګاودار (د الکوزو د کوځې) او نور، خو د شيدو خرڅوونکي به زياتره حلوايان وو او شيدې به د مالجات اوسېدونکو ورته راوړلې.

د حلوايانو تر دوکانو وروسته د زرګرانو څو دوکانونه وو چي د سپينو زرو کار يې کاوه (د کندهار د زرګرۍ صنعت د اهل تشيع په لاس کي دئ) د کابل بازار په همدې برخه کي د بازار په شمالي او جنوبي راسته کي د هندوانو کورونه واقع وو (د کندهار د هندوانو کورونه عموماً په بازارو يا بازار ته نژدې د کوڅو په خولو کي وي، علت يې امنيتي ملحوظات دي) تر دې کورونو وروسته متفرق دوکانونه راځي او ورپسې د ملا ګلداد

---

* _ قاضي غلام محمد هوتک د سردار کهندل خان په واکمنۍ کي د کندهار مشهور عالم او قاضي و. تنزيه الخلفاء عن مطا عن الاعداء يې يو مهم اثر دئ چي په ۱۲۶۴ ق کي يې د ربيع الثاني پر اوومه د يکشنبې په ورځ بشپړ کړئ دئ. (د دې اثر يوه نسخه چي د ښاغلي محمد حليم سليمي په کتابخانه اړه لري، ما ليدلې ده د مرحوم علامه حبيبي يادابښت پر سته) د قاضي غلام زوی عبدالاحد اخوندزاده نومېدئ او سيد جمال الدين چي په ۱۲۸۳ ق کال کندهار ته راغلی و. له دغه عبدالاحد اخوندزاده سره يې کتلي وه (وګورئ: اسناد و مدارک چاپ ناشده دربارهٔ سيد جمال الدين ۸ مخ) د دې کورنۍ متاخر سړی لالکو نوميدئ چي د همدې کوڅې په خوله کي به ناست و د ميرګی په ناروغي اخته کسان او نور ناروغان به يې اوده کول، ما ليدلئ و.

کوخه ده * او تر هغې وروسته یو تجارتي سرای چې په (کواړي) مشهور دئ او تر هغه وروسته کلافصیل واقع دئ د کابل بازار جنوبي راستې هم تر پای ته رسېدو دمخه یو برج درلود چې د احمدشاهي کلا د دغه برج غربي څنډې ته پرته وه او کوخه یې کلا فصیل نومېږي. د کابل بازار شمالي کلا فصیل د برو درانو شاه برج ته او جنوبي کلا فصیل یې د کاکړو شاه برج ته رسیږي. د احمدشاهي ښار د کابل دروازه د همدې دوو کلافصیلونو تر منځ واقع وه چې تر سقوي عصر پوري (۱۳۰۸ ش) لا ودانه وه.

د کابل بازار د جنوبي راستې په پای کې یوه نرۍ لار مخ پر جنوب شوه سوې وه چې په سر کې یې د سلمانیانو څو دوکانونه وو او په پای کې یې یو کاریز او مسجد و. دا مسجد د صوفیانو مسجد نومېدئ او امامت یې د مرحوم عبدالخالق اخندزاده کاکړ پر غاړه و. پر کاریز باندې د اوداسه گودرونه او د غسل لپاره ځایونه د نوموړي عبدالخالق اخندزاده د پلار ملاعبدالباقي اخند ** په لاس

---

* _ ملا گلداد اخوند په قوم کاکړ او د کندهار لوی عالم و چې د همدې کوخې په مسجد کې یې د تدریس حلقه فعاله وه او د مسجد امامت یې هم کاوه خکه نو دا کوخه چې اصلاً د پوپلزو کوخه وه د ده په نامه مشهوره سوه. د ملا گلداد اخوند زیارت د شاه ویالې پر غاړه د ملا احمد اخوند زیارت ته نژدې په هغه کوخه کې واقع دئ چې د محمود طرزي د اوسني ښوونځي غرب ته پرته ده دا کوخه د کندهار عمومي هدیرې ته وتلې ده. د ملا گلداد اخوند د لور اولاده په همدې کوخه کې اوسېدله چې متاخر سړی یې حاجي نظر جان بوټ ساز و.

** _ ملا عبدالباقي اخوند د کندهار یو مشهور عالم، مصلح او پرهېزگار سړی و په قوم کاکړ او (افغان) تخلص یې کاوه. ملا عبدالباقي اخوند د ساکزی محمد رسول (رح) مشهور په (صوفي صاحب) له پیروانو څخه و. د تهذیب الواجبات لتخریب العادات په نامه یې په پښتو نظم یو کتاب کښلی و چې د ناوړه عادتونو. بدعتونو. او بې لاریو پر ضد یې ډېر اشعار پکښې ویلي دي. دا کتاب دوه واره چاپ سوئ دئ او په سراج الاخبار کې له همدې کتابه ځیني شعرونه هم انتخاب سوي او خپاره سوي دي. ملا صاحب د ۱۳۴۴ ق کال د رجب د میاشتې په دوولسمه (۶ دلو ۱۳۰۴ ش) وفات سوئ او د کندهار په عمومي هدیره کې ښخ دئ.



موی مبارک ( د کهندل خان جامع )



د کهندل خان جامع

جوړ سوي وو. دغه راز د همدې راستې په نيمايي کې د زرګرانو د دوکانو مخ ته پخوا يو ځا کيندل سوئ و چې تل به د پخو اوبو کټوري پر پراته وو يو مسئول شخص يې درلود چې کټوري به يې ډکول، دا راز ځاهان په هر بازار کې کيندل سوي وو او (يخ ځاه) به يې باله، کابل بازار د نورو بازارو په شان د سړک پر دواړو څنډو لښتي درلودل چې اوبه به پګښې بهېدلې له اوبو څخه د سړک د اوپاشۍ لپاره کار اخيستل کېدئ مګر په حقيقت کې يې د ښار د بدرفت اوبه له ښاره ايستلې. دا لښتي له پخو خښتو جوړ سوي وو او ځای ځای يې حوضچې هم درلودې.

## پوښلي چارسو :

څنګه چې د دې بازار سر پوښلئ دئ ځکه نو د پوښلي چارسو، پوښلي بازار يا نوي چارسو په نامه يادېږي. دا بازار د پخواني ښار يوازنۍ ودانه نخښه ده چې پر هماغه خپل حال پاته ده. البته نور بازارونه هم د احمدشاهي ښار بقايا دي خو له تعميراتي لحاظه پګښې بدلون راغلئ دئ. د نوي چارسو له نامه څخه معلومېږي چې دا بازار د احمدشاهي عصر وروسته ودان سوئ دئ او حقيقت هم دا دئ چې دغه بازار د کهندل خاني واکمنۍ له ودانيو څخه دئ.* د پوښلي چارسو يوه خوله په کابل بازار او

---

* _ کهندل خان (۱۲۰۸ _ ۱۲۷۱ ق) د امير دوست محمد خان ميريزی ورور او د سردارپاينده خان بارکزی زوی و. کهندل خان او وروڼه يې (پردل خان. رحمدل خان. مهردل خان، شيردل خان) له يوې مور څخه وو او د (کندهاري وروڼو) په نامه يادېدل مور يې هوتکه وه. کهندل خان دوه واره پر کندهار حکمراني کړېده چې لومړی دوره يې له ۱۲۴۵ ق څخه تر ۱۲۵۴ ق پورې وه. دا دوره يې د انګريزانو په راتګ سره پای ته ورسېده. دوهم وار واکمني يې له ۱۲۵۸ ق څخه تر د ده تر مرګه پورې (۱۲۷۱ ق) دوام وکړ. د واکمنۍ دواړه دورې يې په قمري حساب ۲۱ کاله و درې مياشتي کيږي. (۲۱)

بله يې په شاه بازار کې ده. د بازار شکل د قايمي زاويې د دوو ضلعو په شان دئ په شمالي ـ جنوبي ضلع کې يې بوټ خرڅوونکي او شرقي ـ غربي ضلع کې يې سمساران * دوکانونه لري. د بوټ خرڅوونکو د دوکانو په منځ کې د (دنګانو) په نامه يو سرای وشمه ځای دئ چې نکريځي پکښې جوړيږي. د بازار غرب او جنوب ته د کهندل خان جامع (موی مبارک) موقعيت لري. د دغه بازار دوکانونه پخوا د جامع وقف وو اوس منفردو کسانو رانيولي دي. د کهندل خان جامع د کندهار ښار ډېره لويه جامع ده په دې جامع کې موی مبارک هم سته او خلک يې زيارت کوي د جامع په منځ کې د پاتاو په نامه لويه واله تېره سوې ده چې پخوا يې پر دواړو غاړو د اوداسه له پاره په پخو خښتو زينې جوړي سوي وې خو اوس يې پاتاو پوښلئ او د مسجد په صحن يې ګډ کړئ دئ. د دې جامع وروستی خطيب نورالحق اخندزاده نومېدئ د روسانو د تيري په کلونو کې به کله يو ځا کله بل ځا امامت کاوه ** د پوښلي چارسو د دواړو بازارو په تقاطع کې د باميزو کوڅې دوې خولې را خلاصي دي چې په يوه کې يې د خولۍ ګنډونکو څو دوکانونه سته.

## شاه بازار :

شاه بازار د چارسو له چوک څخه مخ پر شمال پروت دئ چې پای يې د ولايت ودانۍ (ارګ) ته رسيږي د شاه بازار

---

* ـ د سمسارانو په دوکانو کې خامکي توکران، ګلابتوني خولۍ، رخچيني، چادرۍ، واسکټونه خرڅيږي. سمسار عربي کلمه ده (د دلال په معنا). د عربو په عرف کې سمسار هغه چاته ويل کيږي چې مختلف جنسونه خرڅوي (غياث اللغات)

** ـ نورالحق اخندزاده د عبدالحق اخندزاده ورور او په قوم هوتک و. اوس چې دا کرښې ليکم (۱۳۷۲ ش) د جامع د امامت چاري د عبدالحق اخندزاده د زوی محمد حق اخندزاده پر غاړه دي.

لویدیځه راسته له چارسو څخه بیا پوښلي چارسو تر خولې پورې د قنادانو دوکانونه دي. (قنادي د کندهار د اهل تشیع په لاس کې ده) ورپسې د عطاجان او غلام یحیی خان تجارتي سرایونه واقع دي * او تر هغه وروسته د نخودوالاوو دوکانونه شروع کیږي په دې دوکانو کې نخود، جلغوزي او پستې پخېدلې او په عمده توګه په یې خرڅول. د نخودوالاوو د دوکانو په منځ کې څو کاله دمخه د (انوري مارکیټ) په نامه یو تجارتي سرای په دوه پوړه کې په پاخه ډول جوړ سو چې څښتن یې د کندهار مشهور سوداګر حاجي انور و. د شاه بازار د غربي راستې په منځ کې د سدوزو کوڅه واقع ده په دې کوڅه کې د اعلیحضرت احمدشاه بابا کور سته چې اوس هم ولاړ دئ (جوزا ـ ۱۳۷۲ ش) او د سدوزو د یوې مخوري کورنۍ په لاس کې دئ چې د لوی ټولواک احفاد دي ** دا کور ستر تاریخي اهمیت لري او که افغانان په تیره بیا کندهاریان سنجش ولري باید له نړېدو یې وژغوري. د سدوزو په کوڅه کې دننه دواړو خواوو ته دوکانونه سته چې نکریځي، د کتوي دارو او نور مساله باب خرڅوي د کوڅې په پای کې د ماهي والاوو دوکانونه وو. په

---

* ـ اروابناد عطاجان او اروابناد غلام یحیی خان د اروابناد موسی خان توخي مشران وروڼه وو. دا کورنۍ د کندهار مشهور سوداګر او خیر رسان مخور وو چې په هیواد کې یې د صنایعو په ایجاد کې پوره ونډه اخیستې ده. د اورلګیت جوړولو او یخي فابریکې یې تاسیس کړي او په کندهار کې یې ډېر تعمیرونه، تجارتي سرایونه، تفریحي ځایونه او مسجدونه اباد کړي دي. د عطاجان سرای د روسانو په لاس وسوځېد ځکه یې اوس "سرای سوخته" بولي.

** ـ د اعلیحضرت احمدشاه بابا اولاده اوس هم د سدوزو په کوڅه کې د لوی ټولواک په کور کې اوسي خو له بده مرغه دا تاریخي کور د کورنیو ویشونو په لړ کې پر څو برخو ویشل سوئ دئ. ډاکټر محمد ګل رومان چې اوس په کاناډا (اونټاریو) کې اوسي، د دغې کورنۍ له غړو څخه دئ.

وروستیو کلونو کې د دې کوڅې په جنوبي خوا کې درې ځلور تجارتي مارکیټونه جوړ سول او د روسي تجاوز په وخت کې د ټول کندهار تجارتي مرکز همدغه څو سرایونه وو ځکه له بازاره ګوښه وو.

بازارونه به هر ګړی د جګړې په ډګر بدلېدل ځکه خلکو خپله ورځنۍ راکړه ورکړه په همدې مارکیټو کې کوله. د شاه بازار په غربي راسته کې د سدوزو کوڅې شمال ته د لوی احمدشاه بابا مسجد جامع ودانه ده چي کندهاریان (شاه جامع)* ورته وایي. له دې ځایه تر ارګ پوري د غوړی والاوو دوکانونه دي او په منځ کې یې یوه منډیی ده چي غوړي، وریجي او نوري غلې دانې پکښې خرخېږي. دا منډیی یې د (غوړو ګنج) باله ـ ورپسې یوه لویه کوڅه ده چي په سر کي یې پخوا د مسګرانو دوکانونه وو. تر کوڅې وروسته د کتابفروشانو او صحافانو دوکانونه شروع کېدل او د ارګ تر چوکه رسېدل.

د شاه بازار شرقي راسته د چارسو له چوک څخه په یو کوچني سرای شروع کېدل چي (تیمچه) ** یې بلله ورپسې (مخ پر شمال) کوچني کوچني دوکانونه دي چي شاته یې د کهندل خان جامع (موی مبارک) ده په دې دوکانو کي (عطریات، وریښم، سومه، بُربُر،

---

* ـ د دې جامع د خطابت چاری د عبدالله اخوندزاده چي په خطیب اخوندزاده مشهور و، پر غاړه وې. نوموړی د ملا اسماعیل الکوزي په اولاده کي د احمدجان اخوندزاده زوی و. ارواښاد خطیب اخوندزاده جګ، سپین پوستی نوراني سړی و، تکه سپینه ږیره یې وه، د وعظ او خطابې په وخت کي به یې خلک ژړول او پخپله به یې هم ژړل. له معارف سره همکار و. د ثور تر فاجعې وروسته د نامعلومو کسانو له خوا پخپل مسجد کي د ماښام د لمانځه ذ اداکولو پر وخت شهید سو (جنت فردوس دې نصیب سي). خطیب اخوندزاده د عیدګاه خطیب هم و او د ملا فرح الدین اخوند په کوڅه کي یې د خپلي کورنۍ د مسجد امامت هم کاوه.

** ـ وګورئ د (۲۰) مخ دوهمه حاشیه.



خرقه شریف او د احمدشاه بابا مزار

مرۍ، خالونه ...) خرڅېدل چې د (الغبندانو) په نامه یادیږي دا دوکانونه د پوښلي چارسو خولې ته رسېدل له پوښلي چارسو وروسته د ساعت پلورونکو، د بوټ پلورونکو او فیشن فروشانو دوکانونه وو چې د بامیزو تر کوڅې رسېدل. دا کوڅه د سدوزو کوڅې ته مخامخ پرته ده له بامیزو کوڅې څخه تر برو بازار پورې متنوع دوکانونه وو چې په منځ کې یې د فتح خان کوڅه واقع ده* په دې کوڅه کې زیاتره بارکزي اوسېدل.

برو بازار د شاه بازار په پای کې د شاه جامع پر مخامخ (مخ پر شرق) غزېدلئ دئ چې وروسته به پر ورغېږم. له برو بازاره بیا تر ارګ پورې د مسګرانو دوکانونه دي چې دا صنعت هم د کندهار د پارسیوانانو (اهل تشیع) په لاس کې دئ. تر مسګرانو وروسته د برو بازار بله خوله راوتلې ده ورپسې د ارګ چوک دئ.

په شاه بازار کې د کندهار مشهور کبابي د سدوزو کوڅې ته نژدې دوکان کاوه د ده د کباب خوند او بوی اوس هم زما سره د یوې خاطرې په توګه پاته دئ.

---

* ـ فتح خان په قوم اڅکزی او د دغې کوڅې اوسېدونکی و ځکه نو دا کوڅه د ده په نامه و نومول سوه. لوی سرای یې اوس هم ولاړ دئ او د ده کورنۍ پکښې اوسي.

**ارگ** :

د ارگ په نامه یوه کلا د احمدشاهي کندهار شمال ته پرته وه چې د نونسمي میلادي پېړۍ تر پایه پوري لا په هماغه لومړني شکل ولاړه وه. خو د ارگ اوسنۍ ودانۍ د سراجي عصر له ودانیو څخه ده چې د سراج الملة والدین امیر حبیب الله (۱۹۰۱ _ ۱۹۱۹ ع) په حکم د سردار محمد عثمان خان والی* په وخت کي جوړه سوې ده. پخوا په دې ودانۍ کي د ولایت پر مقام سربېره د کندهار زیاتره دولتي اداري واقع وې. د ودانۍ شمالي او جنوبي لور ته تعمیرونه جوړ سوي چې په منځ کي یې لوي غولی دئ او د ناجو غټې درختي، د گلانو باغچې او د اوبو کوچنی ډنډ (حوض) پکښې دي د ودانۍ شمال ته په یوه اوږده برنډه کي د ولایت مقام د مکلفیت اداره او نور دفترونه دي. پخوا د معارف مدیریت او مستوفیت هم دلته وو چې اوس د کندهار نوي ښار ته نقل سوي دي. د دې ودانۍ شرقي خواته یو بل کوچنی تعمیر سته چې یو وخت مدیریت خارجه و، وایي چې څه موده روغتون و. د ولایت د تعمیر لویدیځي خواته یو سړک شمالاً او جنوباً غزېدلئ دئ. د سړک پر غربي څنډه ( د ارگ چوک ته متصل) یوه بله ودانۍ پرته ده چې پخوا د مستوفیت او مخابراتو دفتر و، وروسته د عینو په نامه د نجونو لیسه سوه. د عینو لیسې شمالي خواته د

---

* _ سردار محمد عثمان خان د سردار محمد عمر خان زوی او د سردار محمدعظیم خان (د کشمیر والي) لمسی و چي په ۱۹۰۴ ع کال د کندهار نائب الکومه سو. په ۱۹۱۲ ع کال (۱۳۳۱ ق د شوال په ۱۹ د یکشنبې په ورځ) خلکو بلوا پر وکړه قاضي او د هغه زوی یې ووژل او په همدې ورځ سردار محمدعثمان خان له نائب الحکومگۍ څخه موقوف سو. وایي چي نوموړي به تل په سره رنگ امضاء کوله په دې خاطر په (سرخ دستخط نائب) مشهور و. زوی یې سردار غلام فاروق خان هم د کندهار نائب الحکومگي کړې ده.



د احمدشاه بابا مزار د توپخانې بازار د چوک لخوا

خرقې مبارکې زيارت او د لوی احمدشاه بابا مزار واقع دئ* د دې لېسې غربي خواته پخوا (محمديه مدرسه) وه چي په ۱۳۳۸ ش کال د حکومت له خوا وتړل سوه.

د ارګ چوک شرقي لور ته د ښاروالۍ تعمير پروت دئ. د ارګ چوک دوه درې چمنونه او دوې درې د صبر جګې ونې لري. د چوک جنوب ته د دوکانو دوې راستې دي يوه يې د شاه بازار د شمالي خولې شرق ته او بله غرب ته. د شرقي راستې دوکانونه د سراجانو ** دي (دوی د اسانو زينونه، قيضې، د کارتوسو کتارونه، د توپک او تفنګچو پوښونه ... جوړوي کاسبان يې اکثراً پارسيوانان دي) د غربي راستې دوکانونه د بايسکل سازانو دي ورپسې د صحافانو او کتابفروشانو دوکانونه واقع دي *** چي ډېره برخه يې د ارګ شرقي خواته دي د ارګ چوک له جنوب غربي کونج څخه د توپخانې بازار شروع کيږي. وايي چي د ارګ چوک پخوا د خپلواکۍ د جشن د نمانځلو ځای و. د صحافانو او بايسکل سازانو په راسته کي پخوا د عکاسانو څو دوکانونه وو. د کندهار ډېر پخوانی عکاس (سيدعکاس) په همدې ځای کي دوکان درلود. د جامو طرز يې د ترکيې خلکو ته ورته و. دکندهار د اوسېدونکو او حکومتي مامورينو منحصر بفرد عکسونه يې د دوکان پر دېوال ځوړند کړي وو. نور عکاسان هندوان وو چي وروسته يې دوکانونه هرات دروازې ته نقل کړل. د ارګ عکاسانو فوري عکسونه اخيستل.

---

*_ دغه سيمه چي اوس د احمدشاه بابا مزار پکښې دئ په احمدشاهي عصر کي د (روضه باغ) په نامه يادېدله د دغي سيمي څنګ ته چي کومه واله بهيږي په پخوانيو رسمي اسنادو کي د (نهر روضه باغ) په نامه قيد وه ، نهر شاهي يې هم بلله اوس يې شاه واله بولي. (۲۲)

**_ سرج د آس زين ته وايي (غياث اللغات) سراج زين جوړوونکی.

***_ د کندهار صحافان د روسي يرغل په وخت کي کوټې (بلوچستان) ته مهاجر سول او زياتره يې د کوټې ښار په شالدره روډ کي دوکانونه لري.

## توپخانه بازار :

دا بازار د ارګ چوک له جنوب غربي کونج څخه شروع او مخ پر غرب غزېدلئ دئ بله خوله يې توپخانې چوک ته رسيږي. د توپخانې چوک پر هغه سړک واقع دئ چې هرات دروازه او مدد چوک سره نښلوي.

توپخانه بازار په منځنۍ برخه کي يوکوچنی چوک لري چي له هغه وروسته د بازار مسير جنوبي لور ته لږ څه ميلان لري. د دې بازار شرقي خولې ته نژدې د شاهي طويلې کوڅه او غربي خولې ته څرمه يې د بابړو کوڅه پرته ده، دواړي کوڅې د بازار په جنوبي راسته کي واقع دي د بابړو په کوڅه کي د نورمحمدخان بابړ (امين الملک) کور واقع و. نورمحمد خان بابړ د شاه زمان سدوزی خسر کېدی. د دغي کورنۍ د معاصر ځلانده ستوري فاضل استاد پوهاند عبدالشکور رشاد درنه کورنۍ په همدغه کوڅه کي اوسي. د بازار چوک شمال او جنوب ته هم دوې کوڅې سته. د توپخانه بازار زياتره دوکانداران او اوسېدونکي پارسيوانان دي. د بازار دواړو راستو.ته پر بېلابيلو دوکانو برسېره د ربړي څپليو، سلواغو جوړولو، د يومانو، د ختو د کاسو جوړولو دوکانونه سته. په دې بازار کي د سوټکانو ټکهار دومره لوړ وي چي ږغ يې د ښار په زياترو برخو کي اورېدل کيږي. د بازار په لويديځه خوله کي د توپخانې چوک ته نژدې د کلا فصيل کوڅې واقع دي. د توپخانې چوک پر مخامخ د البيروني ليسه او د کاکا سيداحمد* لومړنی

---

* _ کاکا سيداحمد خان لودين د کندهار له وطندوستو او ترقي غوښتونکو کسانو څخه و. د مشروطيت غورځنګ په فعالينو کي يې ښه نوم درلود د مشروطه غوښتني په تور څو کاله بندي هم سو د اعليحضرت امير امان الله خان د پاچا کېدو په کال له بنده خلاص سو (۱۲۹۸ ش). کاکا د سواد آموزۍ په برخه کي په خپل ابتکار يو طرز منځ ته راوړي و چي د "اصول کاکا" په نامه مشهور دئ. نوموړي د ۱۳۰۶ ش کال د حوت پر ۱۴ د يکشنبې په ورځ په کابل کي وفات او په شهداي صالحين کي ښخ سو. (۲۳) د طلوع افغان اخبار د اووم کال ۲۳ ګڼي د (وفات کاکا) تر عنوان لاندي په پارسي ژبه د نوموړي د مرګ خبر خپور کړئ دئ. هوړې يې د حوت ۱۴ د دوشنبې ورځ بللې ده.

ښوونځی موقعیت لري چې شاته يې د کندهار د عسکري فرقې غربي دروازه ده. د البيروني ليسې شمالي لور ته تر يو فرعي سړک وروسته پښتني تجارتي بانک او د هغه څنګ ته د توپخانې مسجد جامع ودانه ده.

## هرات بازار:

دا بازار له چارسو څخه مخ پر غرب اوږد پروت دئ چي بل سر يې هرات دروازې (د شهيدانو چوک) ته رسيږي. په جنوبي راسته کي يې په ترتيب سره د شيرعليخان کوڅه * ، د ملا فرح الدين کوڅه ** (د دې کوڅې بل نوم د اخوند صاحب دهنه ده.) د عمرانو کوڅه او کلا فصيل واقع دئ، او په شمالي راسته کي يې پر کلا فصيل سربېره د ملا شال کوڅه (د شيرعليخان کوڅې ته مخامخ)، د فضلو اخوندزاده کوڅه *** او دوې نوري کوچنۍ کوڅې سته.

---

* _ سردار شيرعليخان د مهردلخان زوی او د امير شيرعليخان د اکا زوی په ۱۸۶۸ _ ۱۸۷۰ کي د کندهار والي و. د غازي محمدايوب خان په مقابل کي د انګريزانو په پلوي وجنګېدئ. په ۱۸۸۰ ع کال د دسمبر پر ۲۷ د انګريزانو په بلنه کراچي ته ولاړ. اولاده يې تر ۱۹۷۱ ع پوري لا په کراچي کي اوسېدل. ښايي اوس هم هورې اوسي. (۲۴)

** _ ملا فرح الدين اخوند د کندهار له ډيرو مشهورو علماوو او مشايخو څخه و. په ۱۱۵۹ ق کي زېږېدلئ او په ۱۲۴۱ ق کي وفات سوئ او پخپله جامع کي ښخ دئ. نوموړی د ميافقيرالله صاحب جلال ابادي له خليفه ګانو څخه و چي په مريدانو کي يې علامه حبيب الله اخوند زاده (محقق قندهاری) شامل و. په پښتو ژبه يې د تعداد لکباير په نامه يو منظوم اثر (مثنوی) کښلئ دئ. د ملافرح الدين اخوند زوی محمدشفيع صاحبزاده هم د خپل وخت عالم او د تاليفاتو څښتن و. په اثارو کي يې د (عروة الوثقى فی محبت الاولياء) او (چهل حديث) په نومونو دوې رسالې ما ليدلي دي چي د دوی د کورنۍ له يوه غړي حاجي عبدالباقي قريشي سره خوندي دي.

*** _ اروابښاد فضلو اخوندزاده د خيرو اخوندزاده ورور او د کندهار د مشهور مفسر او مدرس عالم علي محمد اخوندزاده زوی دئ. علي محمد اخوندزاده د ۱۳۰۴ ش کال د اسد پر نهمه نېټه د شنبې په ورځ وفات سوئ او د مړيني خبر يې د طلوع افغان اخبار په څلورم کال ۴۹ ګڼه کي خپور سوئ دئ.

په شیرعلیخان کوڅه کې د سردار مهردل خان مشرقي (۱۲۷۱ ق مړ) * کور سته، دغه راز د مشرقي لیسې پخوانۍ ودانۍ (دا لیسه عوام د شالمار مکتب بولي او د کندهار لومړنی ښوونځی دئ چې په اماني عصر کې جوړ سوئ دئ)، د مهردلخان جامع په **همدې کوڅه کې ده. د ملا فرح الدین اخوند په کوڅه (اخوند صاحب دهنه) کې د ملا فرح الدین اخوند جامع او زیارت سته. د دې کوڅې په خوله کې پخوا یخ څاه و چې تږي به پر اوبېدل.

د هرات بازار په جنوبي راسته کې د چارسو له چوک څخه دبزازانو دوکانونه پیل کیږي چې د شیرعلیخان کوڅې پوري مسلسل پراته دي په منځ کې یې څلور منزله پخه ودانۍ ولاړه ده. بیا نو د شهیدانو تر چوک پوري متفرق دوکانونه (درملتونونه، د برق د سامانو دوکانونه، خوراکه فروشۍ، فیشن فروشۍ ...) دي د شهیدانو چوک ته نژدې د میوې خرخولو دوکانونه او قصابۍ سته چې پر سر یې یو برج واقع دئ او د پولیسو ماموریت پکښې دئ.

---

* ـ سردار مهردلخان مشرقي د سردار پاینده خان بارکزی زوی و. ورونه یې (کهندل خان، پردل خان، رحمدل خان، شیردل خان) د کندهار مستقل حکمرانان وو. پخپله سردار مهردل خان هم د کندهار حکمراني کړېده. دوی په تاریخ کې په (کندهاري ورونو) مشهور دي. مشرقي په تصوف، ادب او تاریخ کې د مطالعې خښتن و په پښتو او فارسي یې شعر وایه. (د تفصیل لپاره وګورئ: د میرزا حنان بارکزی دېوان د لیکونکي په سریزه ـ د ۱۳۷۰ ش چاپ ـ کراچي).

** ـ د مهردل خان جامع د مشرقي لیسې د پخوانۍ ودانۍ پر مخامخ واقع ده د امامت چاري یې د اروابناد نوراحمد اخوندزاده پر غاړه وې. نوراحمداخوندزاده په قوم بارکزی او د قران مجید حافظ و. د روژې په میاشت کې به والي او نورو عسکري او ملکي مامورینو د ده په امامت د ختم تراویح کولې. ډیر مجلس ارایه سړی و د علم پر څنګ یې ظرافت هم درلود. زوی یې عبدالصمد اخوندزاده نومیږي چې دی هم د قران حافظ دئ.



ښکارپور بازار .د عبدالرب اخوندزاده جامع
( د مددخان جامع ) .

د هرات بازار په شمالي راسته کې له چارسو څخه د میخ پلورونکو او آهنګرانو دوکانونه شروع کېږي ورپسې بیا متفرق دوکانونه دي. د دې بازار په شمالي راسته کې چارسو ته څرمه دغه تجارتي مارکیټونه سته : د عطاجان سرای (د دې سرای بله دروازه په شاه بازار کې ده)، د موچیان دوزانو سرای (د پوهاند رشاد یاداښت) چې اوس یې د احمدعلی اخوندزاده سرای بولي* ، د حاجي نظر جان سرای ** ، د عطاجان په سرای کې د عطارۍ، چای فروشۍ، یوناني ادویه فروشۍ عمده پلورونکي دوکانونه لري او په دوهم پوړ کې د سوداګرو تجارتخانې دي، د احمدعلي اخوندزاده په سرای کې د سوداګرو تجارتخانې او د حاجي نظرجان په سرای کې د بنجاره فروشۍ او چیني فروشۍ دوکانونه سته. د هرات بازار په دواړو کلافصیلونو کې د ماهیانو پخولو دوکانونه دي او د احمدشاهي کندهار د هرات دروازه د دغه بازار په پای کې واقع ده. د هرات دروازې په مدخل کې د کندهاریانو او انګرېزانو تر منځ سخته جګړه سوې ده ځکه نو دا چوک د شهیدانو چوک نومېږي. فاضل استاد پوهاند رشاد صاحب لیکي : "د ۱۲۵۵ ق کال د صفري په لومړۍ هفته کې د پرنګي لښکرو د شاه شجاع په نامه کندهار ونیوئ. درې کاله و پنځه میاشتي انګرېزان په کندهار کې وو ... وروستۍ اووه میاشتي د پرنګي لښکرو په کلابندۍ کې تېري کړلې ... د دغي کلابندۍ (محاصرې) په وخت کې یوه

---

* _ احمدعلي اخوندزاده د ملا عبدالعلي اخوندزاده زوی و چي د ښکارپر بازار په پای کي اوسېدئ او همدلته یې یو مسجد هم ودان کړئ و. نوموړي له مطالعې سره مینه درلوده او کورنۍ یې د پټې خزانې د مؤلف محمد هوتک (مشهور په ممو نیکه) اولاده ده. د زابل ولایت په سیوري کي د ممونیکه کاریز او مځکي اوس هم د دغي کورنۍ په لاس کي دي.

** _ حاجي نظر جان په قوم اڅګزی او په زمینداري او سوداګري بوخت و.

شپه د غازيانو يوې سرتېرې ډلې پر هرات دروازه بريد وکړ، دروازې ته يې اور واچاوه، غوښتل يې چې په کلا ننوزي. پرنگيانو يې مخه ونيوله، له دروازې او کلا څخه يې گولۍ پر و اوروله. د لومړي صف غازيان چې څلوېښت تنه طالبان او يو ملا و، د لوی خدای د رضا په لار کې شهيدان سول ...."

(وگورئ : د حاجي جمعه بارکزي د دېوان سريزه (د پوهاند رشاد په قلم ۳ _ مخ) د دې شهيدانو پر مزار باندې په ۱۳۲۸ ش کال يوه عاليشانه کومبته جوړه سوې ده. له دې چوک څخه د کندهار نوی ښار پيل کېږي.

## ښکاپر بازار :

ښکاپر بازار (چې په دفترو کې شکارپور بازار درج دئ) د چارسو چوک جنوب ته پروت او د احمدشاهي کندهار تر ټولو اوږد بازار دئ. په شرقي راسته کې يې په ترتيب سره دغه کوڅې سته :

د يحيی خان کوڅه (د دې کوڅې بله خوله په کابل بازار کې ده) د ساکزو کوڅه، د مددخان کوڅه * (د دې کوڅې مروج نوم د "جامع کوڅه" و خو د څو کلونو راهيسې د "عبدالرب اخوندزاده" په کوڅه مشهوره سوې ده (تفصيل يې وروسته راځي) قاضی دهنه ** ، کلا فصيل. د غربي راستې د کوڅو نومونه په دې ډول دي :

---

* _ سردار مدد خان ساکزی د تيمورشاهي عصر مشهور شخصيت دئ اصلي نوم يې دلاور خان و، د مددخان لقب د اعليحضرت تيمورشاه له خوا ورکړه سوئ و. (۲۵)

** _ په دې کوڅه کې قاضي سعدالدين خان (خان علوم) او قاضي عبدالشکور خان اوسېدل څکه نو په قاضي دهنه مشهوره سوې ده. خان علوم قاضي سعدالدين خان بارکزی د امير عبدالرحمن خان قاضی القضات او د تاليفاتو څښتن و. په اثارو کې يې يو (ازالة الشين فی حق الوالدين) نوميږي.

د رنگریزانو کوڅه، د بنایانو کوڅه. په شرقي راسته کې له چارسو څخه لومړی د بزازانو دوکانونه دي چې په منځ کې یې د (حبیب مارکیټ)* په نامه یو تجارتي سرای جوړ سوئ دئ. ورپسې متفرق دوکانونه دي (د مددخان تر کوڅې پورې) بیا د نجارانو دوکانونه پیل کیږي (تر قاضي دهنې پورې) وروسته د آهنګرانو (پښانو) او په پای کې بیا متفرق دوکانونه دي. په غربي راسته کې ( له چارسو څخه ) شیریخ والا، پالوده والا، د لندې میوې دوکانونه ،د پسه د کوټیلفو، پښتورګو او اینو دوکانونه ( د رنګریزانو تر کوڅې پورې) بیا نو د بازار تر پایه پورې متفرق دوکانونه دي. په همدې راسته کې چارسو ته نژدې د (تاراسنګه سرای) په نامه یو تجارتي مارکیټ سته چې د اسعارو د تبادلې عمده مرکز دئ. ښکارپربازار د خوراکي موادو ارزانترین مارکیټ دئ په همدې خاطر په عوامو کې دا خبره مشهوره سوې ده چې "په ښکارپر بازار کې احمدشاه بابا خپل دسترخوان ټک وهلئ دئ."** یعني پرېماني پکښې ده.په دې بازار کې د مددخان جامع، مدرسه، د احمدعلي اخوندزاده جامع د خلکو لویې عبادتګاوې او مذهبي مرکزونه دي. د مددخان جامع د سردار مددخان ساکزی له خوا جوړه سوې ده په لومړي سر کې یې امامت د کندهار د ستر عالم عبدالله اخوندزاده ساکزی په کورنۍ اړه درلوده خو وروستني خطیب یې عبدالرب اخوندزاده نومېدئ چې (فیاض) تخلص یې کاوه او د ثور د فاجعې په سر کې

---

* ـ د دې مارکیټ څښتن حاجي حبیب الله خان نومېدئ چې د کندهار مشهور سوداګر او معمر سپین ږیری او په قوم پوپلزی بامیزی و. په ۱۳۲۸ ش کال د حکومتي ضد اغتشاش په تور بندي سو او پنځه کاله یې سخت بند وګاله په ) کال په کراچي کې وفات سو.

** ـ (ټک وهل) د پښتو ژبې په کندهاری لهجه کې پر خپله اصلي معنا سربېره د (څنډلو) په معنا هم راځي.

شهید سو. ډېر ځیرک او تجدد پسند روحاني و په خطابت او نطاقۍ کې یې د خپل وخت په مذهبي پیشوایانو کې ساري نه درلود. د طلوع افغان ورځپاڼې یوه خاصه صفحه یې چلوله او دیني خپروني یې پکښې کولې عمر یې د شهادت پر وخت پنځوس کالو ته رسېدئ (جنتونه دې ځای سي).

## ښکارپر دروازه :

د ښکارپر بازار پای ښکارپر دروازې ته رسېږي چې د احمدشاهي کندهار جنوبي دروازه ده. وایي چې پخوا به هندوستان ته تګ راتګ له همدې دروازې څخه کېدئ. دا دروازه یو چوک لري چې جنوبي سړک یې د کرز، ذاکر، یخ کارېز، کوچني کارېزک ... کلیو او بالاخره د ترنک رود ته رسېږي. د دغه سړک په خوله کې یو شمېر بګۍ ولاړې وې چې نوموړو کلیو ته خلک رسوي. د چوک غربي سړک هرات دروازې ته او شرقي سړک کابل دروازې ته وزي. د ښکارپر دروازې د شمالي مدخل پر راسته او چپه خوا دوه برجونه وو چې د پولیسو ماموریت به پکښې و. دا برجونه د کلا فصیل په خولو کې جوړ سوي وو* پر هغه سړک چې له ښکارپر دروازې څخه هرات دروازې ته وتئ. د مشرقي لیسې نوې ودانۍ د یونسکو په لګښت جوړه سوې وه چې د جهاد په جګړو کې ورانه سوه. د دې سړک پر شمالي څنډه چوک ته نږدې د بکت بابا **

---

* _ د احمدشاهي کندهار د کلا دروازې تر سقوي عصر پورې لا ولاړې وې وروسته یې ونړولې.

** _ وایي چې بکت بابا د افغان و انګلیس د دوهمي جګړې په دوران کې کندهار ته راغلی و. دلته د جذب روحي حالت ورته پېښ سوئ دئ. خلک ورته عقیدتمند سوي دي او تر مړیني وروسته یې دغه زیارت پر جوړ کړئ دئ (۲۶) د زیارت څنګ ته مسجد هم سته.

زيارت دئ نور نو پر دې سړک د يادوني وړ ودانـي نسته، شمالي خواته يې کورونه او جنوبي لور ته يې شنې کروندې (چې کندهاريان يې ماڅې بولي) پرتې دي. سړک د نوروزو تر شاه برج * پورې شرقاً و غرباً پروت دئ. بيا شمال ته گرزېدلئ او هرات دروازې ته رسېدلئ دئ.

د ښکارپر دروازې پر شرقي سړک چې کابل دروازې ته وتلئ دئ، هم د يادوني وړ ځای نسته. شمالي خواته يې کورونه او جنوبي لور ته يې ماڅې دي تر ماڅو په ها خوا د کندهار عمومي مسلخ (سلاخانه) او د هندوانو د مړو د سوځولو ځای واقع دئ. د شمالي خوا د کورونو په منځ کې دوې موری** سته چې يوه يې د بره کيانو کوڅې*** ته او بله يې د گاړيانو کوڅې ته مخامخ واقع ده. دا سړک د کاکړو تر شاه برج پورې شرق و غرب پروت دئ بيا شمال ته تاو سوئ چې له کابل دروازې سره نښتئ دئ. د کاکړو له شاه برج سره د سړک پر شرقي غاړه د (پسو گنج) او پر غربي غاړه يې د (غويو، اسانو او خرو گنج) و. په وروستيو کلونو کې د کاکړو شاه برج ته نژدې د استوگنې ډېر عصري کورونه (کوټی) جوړ سوي وو چې د روسانو د تهاجم په دوران کې په کنډوالو بدل سول.

---

* _ د احمدشاهي کلا پر څلورو کونجونو غټ غټ برجونه وو چې شاه برج به يې باله لکه : د کاکړو شاه برج، د نورزو شاه برج، د برو شاه برج، دلته (شاه) د (غټ) په معنی دئ. په همدې معنا په نورو کلماتو کې هم سته لکه : شاه کاسه، شاه ببو، شاه بي بي يعنی (لويه کاسه، لويه ببو، لويه بي بي).

** _ موری په لغت کې سوري ته وايي، دلته مقصد هغه لارې دي چې خلکو به د ښار په کلا کې جوړولې او له ښار څخه د وتلو او تگ راتگ لپاره به يې کار ځني اخيست.

*** _ دا کوڅه په لوی سر کې د پوپلزو کوڅه ده، د حاجي شاه محمد بره کي (مشهور په حاجي شانو) کورنی په همدې کوڅه کې اوسيدله څکه نو د بره کيانو په کوڅه باندې مشهوره سوې ده.

**کابل دروازه :**

دا دروازه د احمدشاهي کندهار شرقي څنډي ته واقع ده د چارسو په اندازه نسبتاً غټ چوک لري غربي خوله يې کابل بازار، شرقي خوله يې د دارالمعلمين سړک، جنوبي خوله يې هغه سړک دئ چي ښکاپر دروازې ته وتلئ دئ او شمالي خوله برو دروازې ته وتلې ده. د غربي او جنوبي خواوو بيان مو په تيرو پانو کي ولووست. د شرقي لور سړک يې پراخ او منظم دئ او ده خوجې ته نژدې دکندهار عالي دارالمعلمين ته رسيږي. د سړک د دواړو خواوو دوکانونه په عمومي ډول د کندهار د يوه عمران دوسته تاجر ارواښاد شهيد محمد افضل خان لودين له خوا په شخصي لګښت ودان سوي دي* د دې سړک په سر کي چوک ته نژدې د قصابانو، نانوايانو او تيبني والاوو (هغه کسان چي اينې پخوي) دوکانونه دي ورپسې په شمالي راسته کي د (حاجي محمد حسين کواړي) ** په نامه يو تجارتي سراى دئ د جادې په جنوبي راسته کي د غنمو د خرخولو ځو سرايه او ورپسې د بالاکرز کوخه*** واقع ده، نور نو د دې جادې زياتره دوکانونه د موټرو د پرزه جاتو پلورنځي دي. په همدې خوا کي د موټرو ځو ګاراجونه هم سته چي د حاجي محمد افضل خان

---

* _ حاجي محمدافضل خان لودين د حاجي خان محمد خان لودين زوي و چي پلرنۍ مېنه يې د ملا ګلداد په کوخه کي وه. خورا ډېر مسجدونه، مسافرخانې او دوکانونه يې پخپل لګښت جوړ کړي وو. له عمران او ابادۍ سره يې خاصه مينه درلوده. د ثور فاجعې په لومړي کال (۱۳۵۷ ش) په ډېره بېرحمي شهيد سو. خداى (ج) دې وبخښي

* * _ حاجي محمد حسين هوتکي د کندهار يو مبتکر سوداګر و تر کابل دروازې دباندي يې د سپنسو د پيچلو دستګاوي، د نجارۍ ارې او ژرندي اينبي وې چي نوم يې (دکندهار صناعتي موسسه) و. وروسته يې پر همدې ځاى يو تجارتي سراى ودان کړ چي ( د حاجي محمدحسين کواړي) نوميږي حاجي صاحب وروسته کابل ته کډه سو او د ميوند جادې په دوهمه برخه کي يې د ژرندو ماشينونه، ډيزلونه، واټرپمپونه او نور پرزه جات خرڅول.

* * * _ د کندهار ښار جنوب ختيځ ته د بالاکرز په نامه دوه کلي پراته دي چي کوچنى او لوى بالاکرز نوميږي.

لودین ملکیت دئ دغه راز د دې راستې په پای کې یوه مسافرخانه او یوه مدرسه هم وه او په شمالي خوا کې ده خواجې ته نژدې د عالي دارالمعلمین ودانۍ پرته ده. دا ودانۍ په ۱۳۱٦ ش کال د شهید سردار محمدداود خان د نائب الحکومګۍ په وخت کې جوړه سوې ده * په لومړی سر کې ابتدایي ښوونځی و** او د (ده خوجې ښوونځی) په نامه یادېدئ، بیا لیسې ته لوړ سو او د (میرویس بابا لیسه) وبلل سوه ورپسې د کندهار دارالمعلمین پکښې تاسیس سو او میرویس لیسه ورځخه بېله او د منزلباغ جادې ته نقل سوه تر هغه وروسته د ښوونکو د روزنې د عالي موسسې په نامه لوی فرهنګي او تربیوي مرکز پکښې جوړ سو چې په څنګ کې یې د (تجربوي ښوونځی) په نامه لومړنی ښوونځی هم درلود. د ظاهرشاه د سلطنت په اواخرو کې د یونسکو له خوا نوي تعمیرونه پکښې جوړ سول. د عالي دارالمعلمین وداني د دې جادې پای دئ بیا نو د ده خوجې کورونه پیل کېږي خو د جادې سړک امتداد مومي تر خوجک بابا تیریږي او د منزلباغ د دوه لاري په برخه کې د کابل ـ کندهار له لویي لاري سره ګډیږي.

د کابل دروازې له چوک مخ پر شمال یو سړک غزېدلئ دئ. دوکانونه پکښې لږ دي د چوک په خوله کې پخوا د پالان دوزانو*** دوکانونه وو، لرګي و سکاره هم پر دغه سړک پلورل کېدل، د غنمو د خرخلاو څو سرایونه یې هم درلودل. د دغه سړک په شرقي خوا کې د کاروان په

---

* ـ د تاداو اینبوولو خبر یې د طلوع افغان اخبار د ۱۴ کال په ۲۳ ګنه کې سته.

** ـ د روسي تهاجم په دوران کې دا ځای عسکري قرارګاه سوه او سربازانو پکښې واړول (روسانو او د هغه کوډاګي حکومت زیاتره فرهنګي مرکزونه په نظامي اډو بدل کړل او د محوه کېدو زمینه یې برابره کړه) کله چې د دوهم ثور دوران راورسېد د عالي دارالمعلمین ودانۍ یوه محلي قوماندان ته په ویش کې ورسېده. ویل کیږي چې دې قوماندان د تعمیر خښتې و کړکۍ لا هم خپل کور ته یووړې ځکه د غنیمت مال یې باله. والله اعلم بالصواب.

*** ـ پالان دوزان د خرو، اسانو او یابوګانو ځلان، پالانې دمُچې او نور لوازم جوړوي.

نامه کوڅه سته چي د ګچو پخولو څو کړې پکښې دي. د دې سړک په منځنۍ برخه کي يو پنځه پوړيز عصري تعمير د حاجي عبدالمنان تره کي له خوا جوړ سوئ و چي په جګړه کي وران سو. بـرو دروازه د همدې سړک په پای کي واقع ده.

## برو دروازه :

دا دروازه د احمدشاهي ويش له مخي د (برو درانو) د استوګنې ځای و او د دوی په نامه نومول سوېده* بـرو دروازه يـو کـوچنی چوک دئ چي د جنوب له خوا د کابـل دروازې سړک ورتـه راغلـئ. شـرق تـه يـې د ګمـرک بـازار او غـرب تـه يـې بروبـازار پـروت دئ. شـمالي سـړک يـې دوې ضـلعي لـري چـي دواړي د حضرت جي بابا په سيمه کي د کابل ـ کندهار لـه لـويي لاري سره ګډيږي. د برو دروازې شمال ته د حضرتجي بابا سيمه پرته ده **چـي

---

* _ اعليحضرت لوی احمدشاه بابا تر پاچا کېدو وروسته (۱۱۶۰ ق) ځانته د (دُر دُران) او ابدالي قبايلو ته د (دُراني) لقب ورکړ. ابداليان تر دې وروسته په دُرانو مشهور سول. هغو پښتنو ته يې چي د ډيورنډ د تحميلي کرښې په ها خوا اوسېدل، (برو دُرانو) نوم ورکړ لکه يوسفزي او نور. په برو دروازه کي همدا بر دُراني قومونه اوسېدل. د کندهار په هغو يوسفزو کي چي په برو دروازه کي اوسېدل ماته يوه کورنۍ معلومه ده چي د کابل پوهنتون د ادبياتو پوهنځي پخواني استاد پوهندوی نوراحمدشاکر د همدې کورنۍ غړی دئ.

** _ حضرتجي بابا د حضرت امام رباني مجدد الف ثاني (رح) له اولادې څخه دئ او ويل کيږي چي په احمدشاهي عصر کي کندهار ته راغلئ دئ. متقي او پرهيزګاره سړی و او نقشبنديه طريقه يې پالله. زيارت يي د کابل ـ کندهار د لويي لاري شمال ته د وړيو د فابريکې تر شاه واقع دئ. د توتانو يوه تکيه پکښې ده او د تکيې غرب ته د حضرتجي بابا مسجد دئ. د حضرتجي بابا د زيارت دننه احاطه د کندهاري سردارانو (کهندل خان، پردل خان ...) دکورنۍ هديره ده. تر زيارت دباندي د تکيې شرق ته يوه بله هديره سته چي دېوال پر راګرزيدلئ او د کندهار د محمدزو د ځينو کورنيو هديره ده. د حضرتجي بابا د زيارت شمال ته د احمدشاهي کندهار عمومي هديره شروع کيږي چي ويل کيږي د جګړې په دوران کي ښار ته له شاوخوا سيمو څخه راغلو کسانو له خوا کورونه پکښې جوړ سوي او لا پسي جوړيږي. د کندهار د ډيرو مشهورو عالمانو، اديبانو، مشرانو او لويانو قبرونه د لاندي کېدو په حال کي دي چي د زياتي خواشينۍ خبره ده.

د جګړې په وخت کي د دامان ولسوالۍ د بسونو د تم ځـای (ایستادګاه) وه، دغه راز د ډاکترانو څو معاینه خانې، درملتونونه او د لنډې میوې دوکانونه هم پکښې وو. د دوکانو په منځ کي یو تجارتي سرای سته چي (د حاجي روو سرای) نومیږي. د کندهار د وړیو د اودلو فابریکه په همدغه ځای کي د کابل ـ کندهار د لویي لاري پر شمالي څنډه واقع ده * پخوا د حضرت جي بابا زیارت په شاوخوا کي د بوریا جوړولو دوکانونه وو چي کاسبان یې پرملیان وو. وایي چي پر کندهار باندي د مجاهدو د واکمنۍ په وخت کي دغه ځای د وسلو خرڅولو مارکیټ سو. په وروستیو وختو کي پر همدې سیمه د محمود طرزي په نامه یو لوی ښوونځی تاسیس سوئ و چي د شاګردانو د شمېر له مخي د کندهار له لویو ښوونځیو څخه شمېرل کېدئ** د مجاهدینو تر کامیابي وروسته د دغه ښوونځي تعمیر نړیوال سره صلیب واخیست او روغتون یې پکښې جوړ کړ. څه موده وروسته سره صلیب هم کډه بار کړه.

## ګمرک بازار :

دا بازار له برو دروازې څخه شروع او مخ پر شرق غزېدلئ دئ. د بازار په شروع کي دوه درې لوی تجارتي سرایونه او پخپله د ګمرک ودانۍ واقع ده. دا تجارتي سرایونه د وچې میوې مارکیټونه دي یو یې د بادامو سرای او بل یې د کشمشو سرای

---

* ـ د وړیو د اودلو فابریکه د ظاهرشاه د پاچهي په دوهم کال یعني د ۱۳۱۵ ش کال د جوزا په اته ویشتمه (۱۵ جون ۱۹۳۶ ع) پرانیستل سنوه. په دې وخت کي سردار علیشاه خان د کندهار عسکري او ملکي امر و (۲۷). په دې فابریکه کي پشمي کشمیرې، سرج، کمپلونه جوړېدل چي زیاتره تولیدات یې د دفاع وزارت له خوا رانیول کېدل.

** ـ زما یوه ترخه خاطره دا ده چي په ۱۳۶۷ ش کال له کابله کندهار ته ولاړم ومي لیدل چي د دغه لوی ښوونځي تولګي ټول ګروب سوي او خلکو (رفع حاجت) پکښې کاوه ! له ښوونځي څخه بیت الخلاء جوړه سوې وه !

نوميږي. د کشمشو سرای څنګ ته د بازار په جنوبي راسته کې د کاروان کوڅې بله خوله واقع ده. له ګمرک څخه مخ پر ختيځ متفرق دوکانونه دي چې د سپين بولدک تر اډې پورې دوام کوي * د دې اډې زياتره دوکانونه د موټرو د پرزو دوکانونه يا مستريخانې وې** دا بازار تر ده خوجې تيريږي او د کابل ـ کندهار له لويې لارې سره ګډيږي. د بازار د جنوبي راستې په پای کې د صاحب اغا کوڅه*** واقع ده.

## برو بازار :

لکه مخکې چې مې وويل له برو دروازې څخه مخ پر غرب غزيدلئ بازار د برو بازار په نامه ياديږي. دا يو کوچنی بازار دئ چې په سر کې يې د ترکارۍ، نانوايۍ، قصابۍ، پالوده والا دوکانونه دي. (د ښار هر چوک يا دروازې ته نژدې معمولاً همدغه دوکانونه وي) بيا د کلافصيل شمالي او جنوبي کوڅې پرتې دي د شمالي راستې په سر کې د صوفي صاحب عليه الرحمه مسجد دئ دا مسجد د يوسفزو مسجد و او صوفي صاحب عليه الرحمه پکښې استيدئ څکه نو د ده په نامه هم يادېدئ. نور دوکانونه نسته په جنوبي راسته کې د طبيبانو دوه دوکانونه دي چې د (کابليانو) په نامه مشهور دي ورپسې د زرګرانو دوکانونه شروع کيږي چې زياتره د سپينو زرو ګينې جوړوي. د زرګرانو په منځ کې خال خال د بزازانو دوکانونه هم سته. د دې بازار زياتره مشتريان له ارزګان، تيري (ترينکوت) ، ديراوت (دهراود) څخه راغلي مسافر وي.

---

* ـ د سپين بولدک اډه اوس کابل دروازې ته نقل سوې ده (۱۳۷۴ ش).

** ـ افغانان د موټر ميخانيک ته مستري او د موټر جوړولو ورکشاپ ته مستريخانه وايي.

*** ـ صاحب اغا د محمد عمر جان صاحبزاده لقب و. نوموړی د محمديار صاحبزاده زوی په قوم کيشاني توخی و په همدې کوڅه کې اوسېدئ او يوه لويه جامع يې جوړه کړې وه چې اوس هم ولاړه ده.



د حضر تجي بابا زيارت



د حضرتجي بابا چوک د وریود اودلو فابریکه

پخوا د همدې سیمو د موټرانو اډه همدې بازار ته نژدې واقع وه. برو بازار شرقاً غرباً پروت دئ په جنوبي خوا کي يې تر کلا فصيل وروسته د لودينانو کوڅه، د دينارخيلو کوڅه سته.

د برو بازار په پای کي د لرگو گنج واقع دئ. دلته يو زيات شمېر نجاران دوکانونه لري ـ چارپاياني (کټونه)، زانگوگاني، گړونجونه، صندلۍ او نور د لرگو شيان جوړوي. ورپسې د توپک سازانو دوکانونه شروع کيږي چي په دې برخه کي د توپک سامانو جوړولو، کارتوس خرڅولو دوکانونه دي. بروبازار په دغه ځای کي دوې برخي سوئ دئ چي دواړه برخي يې پهٔ شاه بازار گډيږي. په شمالي برخه کي يې د وريجو، غوړو او نورو غلو دانو دوکانونه او په جنوبي برخه کي يې د بزازانو، د ربړي څپليو جوړولو دوکانونه واقع دي.

**عيدگاه جاده** :

د حضرتجي بابا څخه مخ پر غرب د کابل کندهار د لويي لاري په امتداد دٔ کندهار لويه عصري جاده جوړه سوې ده چي د عيدگاه جاده نوميږي. دا جاده د عبدالغني خان گرديزي د نائب الحکومگۍ په دوره کي (۱۳۲۹ ـ ۱۳۳۸ ش) د نصرالله خان مهندس په معمارۍ ودانه سوه. دغه سيمه د جهاد په وخت کي تر ټول کندهار د امن سيمه وه څکه نو ډېره زيانمنه سوې نه ده. د کندهار زياتره سرکاري دفترونه لکه مرستون، د سرې مياشتي اداره، انحصارات، د برېښنا رياست، د پوليسو ماموريت او نور همدلته دي. دٔ جادې په منځ کي د خرقې مبارکي زيارت ته نژدې يوه لويه دروازه (رواق) ولاړه ده چي د محمد ظاهر شاه په پاچهي کي جوړه سوې ده (     ). په احمدشاهي عصر کي پر همدغه ځای د عيدگاه دروازه وه او نوموړی رواق له همدې امله جوړ سو.

د رواق مخامخ یو فرعي سړک مخ پر شمال وتلئ او پر دغه سړک باندي د احمدشاهي عیدګاه مسجد واقع دئ د دې مسجد شرق ته د ښار عمومي هدیره ده چي تر ملا علم اخوند کلي* پوري اوږده پرته ده شمالي خواته یې د نیم کیلو متر په واټن ظاهرشاهي کانال بهیږي** لویدیځ ته یې هم عمومي هدیره ده، چي د ارغنداب تر سړکه رسېدلې ده، جنوب ته یې د انحصاراتو تعمیرونه واقع دي. د مسجد پر احاطه تقریباً د یو متر په جګواله د خټو دېوال راتاو سوئ دئ، محراب یې په یوه دالان کي واقع دئ چي د دالان په دننه کي د سلو تنو په شاوخوا کي لمونځ کوونکي ځاییږي. د مسجد ټوله احاطه تقریباً د پنځوسو زرو تنو لمونځ کوونکو لپاره کافي ده. په دې احاطه کي د غزه ځو درختي ولاړي دي. مسجد پر څلورو خواوو لاري لري خو عمومي لار یې په شرق کي د محراب پر مخامخ واقع ده. په کندهار کي د عیدګاه د لمانځه عنعنه د ثور تر فاجعې پوري (۱۳۵۷ ش) جاري وه. د اخترونو لمونځونه به د ښار او شاوخوا ولسوالیو د خلکو په ګډون په یوه امام پسي په ډېر جوش و خروش کیدل تر لمانځه وروسته به عیدګاه ته نژدې میله هم جوړېدل، دا عنعنه پر کندهار باندي د طالبانو تر واکمن کېدو وروسته په هماغه پخواني برم بیرته ژوندۍ سوه. د عیدګاه مسجد اوس د صوفي صاحب په دښت کي نوی ودان سوی دئ.

د عیدګاه جادې په منځ کي د (سنګي حمام) په نامه یو حمام سته، د دې جادې غربي پای د مدد چوک نومیږي. له مدد چوک

---

* _ وګورئ ( ۶۲ ) مخ.

** _ ظاهرشاهي کانال د ارغنداب له روده د خواجه ملک په حصه کي را جلا سوئ دئ د ښار شمال ته تیریږي د ښورندام کلي په حصه کي مخ پر جنوب تاویږي، د کندهار هوايي ډګر شاوخوا مځکي اوبوي او د ترنک رود ته توییږي دا کانال د یوې امریکایي کمپنۍ له خوا په ( ) کي وکیندل سو.



د شهیدانو چوک

ځخه یوه لار مخ پر شمال لویدیځ ارغنداب ته ځي او بل پوخ سړک مخ پر جنوب پروت دئ چي له هرات دروازې سره ګډیږي. د دي سړک پر دواړو غاړو عصري کورونه جوړ سوي دي. د اریانا هوايي شرکت دفتر، پښتني تجارتي بانک، د ښځو روغتون، پښتون شرکت (د یخي جوړولو فابریکه) د مطبوعاتو لوی مدیریت، د حاجي عبدالله جان الکوزی حمام، پر دغه سړک واقع دي. د سړک په منځنۍ برخه کي یوه لویه جامع لسته چي د توپخانې جامع نومیږي.

## هرات دروازه :

هرات دروازه د کندهار د نوي ښار شروع ده. د دې دروازې بل نوم د شهیدانو چوک دئ، ځکه دلته د هغو شهیدانو هدیره واقع ده چي د افغان و انګلیس په دوهمه جګړه کي یې د انګریزانو د یوې منظمي مفرزې سره په مقابله کي خپل سرونه د وطن په لار کي ایښي وو دا شهیدان د کندهار ښار د مسجدو طالبان وو چي د دوی په ویاړ یو تاریخي خلی او شنه ګومبته په کال ۱۳۲۸ ش جوړه سوې او د هرات دروازې د چوک په منځ کي ولاړه ده شاوخوا یې پخه احاطه سته چي ځو قبرونه پکښې دي. د احاطې پر کونجانو هغه توپونه ولاړ دي چي د میوند په غزا کي (۲۷ جولای ۱۸۸۰ ع) له انګریزانو ځخه په ولجه اخیستل سوي دي. د شهیدانو چوک شمال ته د توپخانې سړک، شرق ته یې هرات بازار، جنوب ته یې د ښکارپر دروازې او هرات دروازې اتصالي سړک موقعیت لري. د غرب خواته یې د کندهار ـ هرات لویه لار شروع کیږي. د دې لاري شمالي اړخ ته یوه عرفي لار د پاتاو پر غاړه واقع ده چي د ډنډ له چوک سره ګډیږي. د شهیدانو چوک جنوبي خوا هم دوې خولې لري چي یوه یې کاریز بازار ته او بله یې ښکارپر دروازې ته وتلې ده.

د هرات دروازې د چوک شمالي دوکانونه زیاتره رستورانونه او کبابیان وو. جنوب ته یې میوند رستورانت او سلیمي رستورانت واقع وو. د کندهار زیاتره رستورانونه او د ځوانانو د تفریح ځایونه، سینما او نور په همدې دروازه کې وو. ځیني مشهور رستورانونه یې دا دي : میرویس رستوانت، پښتونستان رستورانت، میوند رستورانت، سلیمي رستورانت، د حاجي سید محمد رستورانت، اریانا رستورانت، عزت رستورانت او نور.* له عصري هوټلو څخه یو کامدیش هوټل و نور یې د احمدشاه بابا هوټل، پیس هوټل، فیض هوټل او نور وو. د کندهار سرکاري هوټل تر هرات دروازې دباندې واقع و چې اوس د تلویزیون مرکز دئ په دې وروستیو وختو کې د سرکاري هوټل لپاره یوه څو پوړیزه پخه ودانۍ جوړه سوې وه چې په جګړه کې ډېره ورانه سوېده. په هرات دروازه کې د افغانستان بانک او ملي بانک دفترونه هم سته. لکه مخکې چې وویل سوه دا دروازه د نوي ښار پیل دئ او نوی ښار د شهید سردار محمد داودخان په نائب الحکومگي کې (۱۳۱۴ ش) جوړ سوئ دئ. د نوي ښار کوڅې تولې په عصري ډول ودانۍ سوې دي. ملکي شفاخانه، د والي کور، د احمدشاه بابا لیسه، میخانیکي لیسه له هرات دروازې دباندې د هرات ـ کندهار پر لویه لار واقع دي. په نوي ښار کې یوازې د هرات دروازې د چوک شاوخوا دوکانونه لري نور ټول د استوګني کورونه یا دولتي تعمیرونه دي. دوکانونه یې زیاتره لوکس فروشۍ، درملتونونه یا عکاسخانې دي. د هرات دروازې دباندې د شمالي راستې دوکانونه پخوا بوټ سازان وو اوس یې اکثریت د انتیک فروشۍ دوکانونه دي. د شهیدانو چوک شمال ته د حاجي عبدالله جان الکوزي سرای واقع دئ د موټرو میخانیکان پکښې دوکانونه لري.

---

* ـ په کندهار کې رستورانت ته هوټل ویل کېده چې سمه نومونه نه وه.

**کاریز بازار (دگرشک اډه)** :

کاریز بازار د هرات دروازې جنوب غرب ته واقع دئ، هغه سړک چي له هرات دروازې څخه مخ پر جنوب د افغانستان بانک له کونج څخه شروع او د سینما غرب ته تیر سي، په یو بل خام سړک گډیږي چي دا سړک شرق و غرب پروت او د کندهار ـ هرات له لویي لاري سره موازي دئ. د دغه خام سړک پر دواړو غاړو دوکانونه سته او څرنگه چي د گرشک، لښکرگاه (د هیلمند ولایت) بسونه له همدې ځایه تلل ځکه یې د گرشک اډه بولي. د گرشک په اډه کي د سړک جنوبي څنډي ته د قادري شرکت گاراجونه واقع دي. قادري شرکت د افغانستان لومړنی غیر دولتي منظم ټرانسپورټي شرکت و چي بسونه یې پر عصري سیستم برابر او د کابل ، کندهار، هرات او هیلمند تر منځ یې هره ورځ منظم تگ راتگ کاوه. د دې شرکت موسس حاجي عبدالحی قادري و.* د گرشک اډې خام سړک مخ پر غرب غزېدلئ دئ پای یې د هندو چوک ته رسیږي، بیا مخ پر شمال تاو سوئ او د سید عبدالرحمن شاه اغا ** کور ته نژدې د کندهار ـ هرات له لویي لاري سره یو ځای کیږي. د کندهار د جشن منطقه د همدې سړک جنوبي خوا ته تر هندو چوک را لاندي موقعیت لري. د همدې منطقې پر شاوخوا ځیني دولتي دوائر لکه محکمه، د معارفو ریاست، مخابرات او نور سته. د کندهار لومړنی سټډیوم په همدغه سیمه کي جوړ سو (۱۳۵۸ ش) خو په جگړه کي بیرته وران سو.

---

* ـ وگورئ ( ۲۳ ) مخ.

** ـ سید عبدالرحمان شاه اغا د کندهار یو اجتماعي او مخور شخصیت او د عالي ذوق څښتن و خپل شخصي کور یې د خلکو د تفریح لپاره وقف کړئ او یو کوچنی ژوبڼ (باغ وحش) یې پکښې جوړ کړئ و. مازیگر به خلک د تماشا لپاره ورتلل.

لکه مخکې چې مې و ویل د ګرشک اډې سړک د کندهار ـ هرات له لويې لارې سره يو ځای کيږي او دا لويه لار د ډنډ تر چوک تيره او د سرپوزې بازار ته رسيږي، پر دې سړک باندې د ډنډ چوک شمال غرب ته د فاضل کندهاری ښوونځی* ورپسې د کندهار محبس واقع دئ او په مقابله خوا کې يې پښتون باغ** و. له روسانو سره د جګړې په دوران کې دغه سيمه په بشپړه توګه له خاورو سره برابره سوه.

## د سرپوزې بازار :

د سرپوزې بازار د چل زينو بيخ ته پروت و چې د پنځوسو په شاوخوا کې يې دوکانونه درلودل او زياتره يې سماوارونه، ميوه فروشۍ او عطارۍ وې. د بازار په منځ کې د زاړه ښار لار وتلې ده.

---

* ـ دغه ښوونځی د علامه حبيب الله کاکړ (حبو اخوندزاده) په نامه چې په فاضل کندهاري او محقق کندهاري سره مشهور و، نوموړ سوېده. علامه د ملا فيض الله کاکړ زوی و چې په ۱۲۱۳ ق کال د کندهار د باميزو په کوڅه کې زېږېدلئ او په ۱۲۶۵ ق کې وفات سوئ دئ. په معقولو او منقولو علومو کې يې لوی لاس درلود او په عربي، فارسي او پښتو ژبو د خورا ډيرو تاليفاتو څښتن و چې د شهرت اوازه يې په اسلامي هيوادو کې خپره وه، منهاج العابدين يې د هغه اثر نوم دئ چې په پښتو نظم يې کښلئ دئ (تقريباً ۷۰۰۰ بيته) . د علامه فاضل کندهاري د کورنۍ وروستی ستوری علامه عبدالحی حبيبي دئ. د دغې کورنۍ په باب ما يو کتاب کښلی دئ، چې "درنه کورنۍ" نوموړي او ښاغلي حبيب الله رفيع ته مې په ۱۳۸۰ ش کال د چاپ له پاره ورکړی دئ. خو د چاپ د انتظار شپې يې اوږدې سوې.

** ـ پښتون باغ د اروابناد رئيس عطاجان د لاس يادګار و. نوموړي خپل دغه باغ د يوې تفريحګاه په شکل جوړ کړی و. لو واله پکښې بهېدله او يو کوچنی تعمير يې هم درلود چې د ميله والو پر مخ هميشه خلاص و. روسانو دغه باغ له بيخه وکيښ.

دې لاري ته د میاصاحب کوڅه وايي*. دغه بازار ته به د مازیگر له خوا ډېر خلک ورتلل، چل زينو ته به ختل او تفريح به يې کوله. سرپوزه د اوسني کندهار غربي سرحد و، کله چې ميرويس مېنه ودانه سوه د ښار غربي سرحد ډېر شاته وغزېد. دا بازار د روسي يرغل په دوران کي له خاورو سره برابر سو.

## چوڼۍ بازار :

دا بازار د ارغنداب ولسوالۍ پر لار واقع دئ. عسکري بازار يې هم بولي. چوڼۍ د فرقې د منصبدارانو کورونه وو. د دې بازار شرقي خواته د صوفي صاحب زيارت واقع دئ**. او په همدې نامه يې د نجونو او هلکانو ښوونځی هم وو.

## د منزل باغ جاده *** :

دا جاده د کندهار ښار شرقي خواته د کندهار ـ کابل پر لويه لار واقع ده چي د حضرتجي بابا له چوکه شروع او د منزلباغ تر

---

* ـ وگورئ (۵) مخ.

** ـ صوفي صاحب عليه الرحمه په ديارلسمه هجري پېړۍ کي د کندهار يو مشر روحاني، مصلح پيشوا و. نوم يي محمدرسول او په ختّه ساکزی مندين زی و چي په ۱۲۳۲ هـ ق کال د کندهار د ساکزو په کوڅه کي زېږېدلئ او په ۱۲۸۷ هـ ق کال وفات سوئ دئ، په زرگونو مخلصان او ارادتمندان يې درلودل، امير شيرعليخان يې له ارادتمندانو څخه و. (د صوفي صاحب د پېژندلو لپاره د تهذيب الواجبات لتخريب العادات د هغه چاپ سريزه وگورئ چي د ښاغلي حاجي محمد نور کندهاري په همت په ۱۴۰۸ هـ ق کال چاپ سوئ دئ، دا سريزه د ستر محقق پوهاند عبدالشکور رشاد په قلم کښل سوې ده.

*** ـ کله چي د موريسن کنديسن امريکايي کمپنۍ په کندهار کي فعاليت پيل کړ (۱۹۵۰ ع) مرکز يې همدغه منزلباغ و. په راوروسته وختو کي د کوماندو قطعه پکښې وه. يو وخت يې له تعمير څخه د سينما کار اخيستل کېدئ.

دوراهي رسيږي. زياتره د استوګني کورونه پکښې دي چې په جګړه کې له خاورو سره برابر سوي دي. د روسي تجاوزګرو پر ضد لومړنی پاڅون له همدې جادې پيل سو (۱۳ جدی ۱۳۵۸ ش). د منزلباغ وداني د امير عبدالرحمان په پاچهۍ کې د ۱۳۰۰ ه ق کال د ربيع الاول په پنځلسمه جوړه سوې ده خو نوې وداني يې د سراج الملة والدين امير حبيب الله خان په عصر کې د سردارمحمد عثمان خان والي په لاس په ۱۳۲۵ ه ق کې ودانه سوه. (وګورئ : وکيلي ـ عزيزالدين ـ تاريخ خرقۀ شريفه قندهار ـ ۱۰۴ مخ ـ کابل ـ دوهم چاپ ـ ۱۳٦۷ ش)

**ميرويس مېنه** :

دا مېنه تر يو منظم دولتي پلان لاندې د کندهار ـ هرات پر لويه لار ودانه سوې ده او د ښاري بسونو وروستنۍ ايستګاه وه. ميرويس مېنه د اوسني ښار اخرنی غربي سرحد دئ او د ښاروالی شپږمه ناحيه ده. دا سيمه په وروستيو جګړو کې روسانو ډېره ورانه کړه ځکه نو خلک څني کډه سول د ميرويس مېني کورونه زياتره له ماينو ډک دي.

**د معلمانو کارته** :

دا سيمه پخوا د ګچخانو په نامه يادېدله چې د منزلباغ شمال شرق او د کندهار ـ کابل د لويي لاري شمال ته پرته وه. د شهيد محمدداودخان په جمهوريت کې د ښاروالۍ له خوا د کورو لپاره نقشه سوه او پر ښوونکو باندې په ارزانه بيه وويشل سوه، ځکه نو د معلمانو کارته نوميږي. د دې کارتې شرق ته نوې فرقه ، د سروې اراضي اداره او دوه سوه بستريز نظامي روغتون واقع دئ. د لويي لاري ژۍ يې هديره ده. د دې کارتې مخامخ د شهيد محمدافضل

خان لودين لخوا جوړه سوې مسجد جامع او دوکانونه موقعيت لرئ چي د ودانيدو کار يې بشپړ نه سو.

**ملا علم اخوند کلی** :

دا سيمه د منزلباغ جادې شمال ته پرته ده او له منزلباغ جادې څخه يې لار د تيلو له مرکزي ټانک سره متصل جلا سوې ده. زياتره د استوګني کورونه دي چي د يوې لويي غونډۍ پر شاوخوا جوړ سوي دي. ملا علم اخوند د ږوب له کاکړانو څخه و چي کندهار ته راغلیٔ او تدريسي حلقه يې جاري کړې ده. وايي چي په طريقت کي د مياشيرمحمد هوتک مريد و. د غونډۍ پر سر باندي د ملا علم اخوند زيارت دیٔ او لاندي يې عمومي هديره ده.

د ملا علم اخوند کلی اوس د ښاروالۍ پنځمه ناحيه ده.



د دې ليکني په پای کي به خپل يو شعر چي په ۱۳۶۴ ش کال مي و کندهار ته ويلیٔ دیٔ، راوړم. په دغه وخت کي زه له کابله کندهار ته تللیٔ وم او د کندهار ښار له روسي مهاجمينو سره د جګړې په خاطر لوټي لوټي سویٔ و.

## آ ښکلې کندهاره

در واري سم، در واري سم آ زمونږ ښکلې کندهاره !
آ اشرفه د ښارونو، آ نامداره آ تاجداره
ستا په خاوره کي اکسير و د ړندو سترګو توتيا وه
ستا اوبه آب حيات وې هر يو څاڅکي دي شفا وه
هره پاڼه دي زرپاڼه، هره ترخه کيميا بوټی
هر تيږه دي عقيق وه، هره ږبنه دي خارا وه
هر فاتح د ملتونو په ګونډو ستا و همت ته
هر غاصب د ثروتونو تاته پړ. ماتې په خوا وه
تا روزلي اتلان وو، تا روزلي شنه زمريان وو
هنګامه د فضيلت دي خپره سوې شاوخوا وه
چا د وير ماتمکده کړې؟ چا په وينو اغشته کړې؟
چا د خاورو کنډواله کړې؟ چا دي ژوند کړئ ناقراراه؟



د ميرويس مېنه ده ړنګه، د احمد کور تش خالي دئ
حجرې د فضل توري، ظلمت باندي طاري دئ
د قيطول ځوکه چي سپر وه د نادر د سپرو مخکي
په ګوليو رېښکي رېښکي، رود د وينو ترې جاري دئ

د مانجې جرگې دي څه سوې، کوکران ولي خاموش دئ
د شیرسرخ فیصلې ماتي پر زړگي مي داغ کاري دئ
ها مانۍ د نارنج څه سوه؟ ها محفل د ادب چیري؟
تغر تول محضر سپېره هم د فاضل کندهاری دئ
دا شامت د کوم اسي دئ دا تندی د کوم ترینگلي؟
چي شمسور و شنه باغونه دي سول ډک له خنډ و خاره

* * * * *

ستا مانۍ و ستا قصرونه، ستا ویاړلي عظمتونه
ستا دښتونه ستا رغونه، له میوو څه ډک باغونه
ستا جادې ستا سړکونه، ستا کوڅې ستا فصیلونه
ستا قربې ستا محلونه، لویي لاري و واټونه
ستا ځوانان و ستا میړونه، له غیرته ډک یې زړونه
ستا مشران کلک یې هډونه، له هیبته ډک ږغونه
ستا قومونه اولسونه، ستا له ویاړه ډک نسلونه
د نااهلو په لاس ورک سول مات و گوډ شل یې هډونه
ته د چا د سترگو خار وې چي نظر یې ستا هستي کړه
خدای دې ټپ په سترگو ړوند کړي مور دې بوره سي خور وراره

* * * * *

آ نیازمنو، آ غمخورو، آ سپین ږیرو آ ځوانانو
آ غښتلو مېړنیو، آ دوستانو عزیزانو
آ د ننگ و غیرت نسله، د بابا د کور وارثو
له دې کور څخه اور مړ کړئ، د زړه سرو آ زلیمانو
نازولو تې ناز ورکئ، کړېدلي دلاسا کړئ
د دښمن کور یې خراب کړئ آ د رزم اتلانو

د کونډیانو غم یې وخوړئ، یتیمانو تې داډ ورکړئ
دا نغری به بیرته تود سي، په همت د باتورانو
هلئ هلئ ژر سئ ژر سئ، دا کورگی بیرته ودان کړئ
عظمت یې اعاده کړئ، ور روښانه یې کړئ لاره
در واري سم در واري سم آ زمونږ ښکلې کندهاره
آ اشـــرفه د ښـــارونو آ نامـــداره آ تاجـــداره

کندهار _ ده خواجه
۲ _ ۸ _ ۱۳۶۴ ش*

*_ دا شعر مي تر ویلو وروسته په کابل کي د فاضل استاد پوهاند رشاد په کور کي، په داسي حال کي چي اورابناد غریب هم حاضر و، هغوي ته ولوست او د کندهار پر خواشینوونکو حالاتو مو د زړه خواله سره وکړه.

## پايځور

۱. پالوال ـ ډاکټر عبدالرازق ـ د پښتنو نوی پخوانی تاریخ ـ دوهم ټوک ـ ۳۹۷ ـ ۴۰۱ مخونه ـ ۱۹۹۴ کال.

۲. هوتک ـ محمد ـ پټه خزانه ـ ۱۱۲ مخ ـ ۱۳۳۹ ش.

۳. په کندهار کي هغه چاته چي تر اندازې زيات جګ وي، په ټوکو کي د "بدۍ برج" وايي. له دې څخه ښکاري چي نوموړی برج ډېر لوړ برج و.

۴. وګورئ ـ د حاجي جمعه بارکزی دېوان ، سريزه ـ ۱ مخ ـ ۱۳۶۰ ش کابل.

۵. الف ـ هوتک ـ حاجي امان الله ـ د خپلواکۍ لمر ځرک ـ ۲۷۶ مخ.

۵. ب ـ د کندهار له ښار څخه د ميا عبدالحکيم کاکړ (رح) د ايستلو پيښي ته د کندهار د ذاکر د کلي د ميا عبدالحميد صاحب (رح) د کورنۍ يو غړي ميرزا محمد جان چي مجرم تخلص لري، په يوه پارسي مدحيه کي داسي اشاره کړې ده :

نقل شاه غلجایی بشنو که چون برباد شد
ملک ابدالی بخاک شهر او اباد شد
غیرت پیرپرست بیشک یاد کردم یاد شد
بخت او بر گشت و بر تختش دگر داماد شد
شاه حسینی رفت و رفت و عصر امد نادری
کار درویشان نه اسان است از وی کن حذر
هفت کردون را بسوزاند بیک اه سحر
زور درویشان ندانی بند کوژک را نگر
از برای پیر کامل کوه و هامون در سفر
شهر ها ویرانه شد شاهی چه شد کو سروری؟
سلطنت در قبضه او بود سلطانی چه شد؟
قصر و قیطولش کجا شد، تاج کیوانی چه شد؟
شهر مروارید بدست کیست سامانی چه شد؟
حسرت و افسوس و تشویش و پشیمانی چه شد؟
بود تقدیر خدا، لیکن سبب شد کاکری




د دغه مخمس ټول قلمي متن زما سره شته.

۶. د سره غره ګلونه ۴۲ مخ ـ کابل ۱۳۵۷ ش

۷. واقعات شاه شجاع ـ ۹۵ ـ ۹۷ مخونه ـ کابل ۱۳۳۳ ش.

۸. د خپلواکۍ لمر ځرک ۲۶۹ مخ

۹. محمود الحسینی ـ تاریخ احمدشاهی ـ ۵۴۴ مخ ـ ۱۹۷۴ ع
۱۰. تواریخ خورشید جهان ۱۶۱ ـ ۱۶۲ مخونه ـ ۱۸۹۴ ع
۱۱. تاریخ سلطانی ۲۴۵ مخ. (په واقعات شاه شجاع ۸۸ مخ کي ذاکر ته د شاه شجاع د رسیدو نېټه د ۱۲۴۹ ق کال د ذی الحجة الحرام پای ښوول سوې ده)
۱۲. تاریخ احمدشاهي ۵۴۶ مخ
۱۳. هماغه اثر ۵۴۹ ـ ۵۵۰ مخونه
۱۴. تاریخ سلطاني ۱۴۲ مخ. دا موضوع په تواریخ خورشید جهان ، سراج التواریخ، د افغانستان جغرافیایي قاموس او ځینو نورو اثارو کي هم لیکل سوې ده.
۱۵. وکیلي عزیزالدین ـ احمدشاه وارث و مجدد امپراتوری افغانستان ـ جلد اول ص ۴۲۷
۱۶. حیات افغاني، پښتو ژباړه ـ لومړی ټوک ۴۶، ۴۷ مخونه ـ ۱۳۷۰ ش ـ کابل
۱۷. **Personal Records of the Kandahar Campain** سریزه ۱۷ مخ. دا اثر په ۱۸۸۱ م کال په لندن کي خپور سوئ دئ او د هغو افسرانو یاداښتونه پکښې دي چي د افغان و انگلیس په دوهم جنگ کي په تېره بیا د کندهار د میوند. د پیرپایمال او ده خوجي په جنگو کي حاضر وو. دا یاداښتونه د میجر ایش والر له خوا راغونډ سوي او یوه اوږده سریزه یې پر کښلې ده.
۱۸. فرانک مارتین **Under The Absolute Amir** ـ ۱۳ ـ ۱۴ مخونه
۱۹. وکیلي ـ عزیزالدین ـ درة الزمان ـ ۳۰۷ مخ
۲۰. وگورئ: (تاریخ سلطاني) ۱۹۲ مخ او (جنبش مشروطیت در افغانستان) ۱۰۲ مخ.
۲۱. وگورئ: د حاجي جمعه بارکزي دېوان، سریزه دوهم مخ.
۲۲. وکیلي ـ عزیزالدین ـ تاریخ خرقه شریفه ۱۵ مخ د ۱۳۶۷ ش چاپ.
۲۳. حبیبي ـ عبدالحی پوهاند ـ جنبش مشروطیت در افغانستان ۳۴ مخ ـ ۱۳۶۳ ش.
۲۴. وگورئ: لودویک ـ آدمک ـ هو اِز هو اِن افغانستان ـ ۲۴۳ مخ.
۲۵. وگورئ: تاریخ سلطاني ۱۵۱ مخ.
۲۶. خلمی ـ محمد ولي ـ د کندهار مشاهیر ۲۹۶ مخ. ۱۳۶۸ ش
۲۷. حبیبي ـ عبدالحی پوهاند ـ د افغانستان پېښلیک ـ ۲۷۷ مخ ۱۳۵۳ ش



# مننه او کوروداني

د ملي سوداګر او درانه فرهنګپال عبدالله "ایوبي" څخه مننه کوو چي د هغوی د سپېڅلي احساس له مخي رشاد خپرندویه ټولنه د دې جوګه سوه چي د هیواد د مشهور لیکوال محمدمعصوم هوتک خوږ اثر "احمدشاهي کندهار" د چاپ په جامه سنبال هیوادوالو ته وړاندي کړي .

د لوی خدای ﷻ څخه د ښاغلي ایوبي د درانه او خواږه ژوند غوښتنه کوو .

(په درنښت)

رشاد خپرندویه ټولنه ـ کندهار

